# څرک

اتم کال نهمه ګڼه - پرلپسې ۷۳ ګڼه - سلواغه - کب ۱۳۹۱ ل، ربیع الثانی ۱۴۳۴ ق - فروري ۲۰۱۳م



شیخ التفسیر والحدیث مولانا عنایت الله " برهانی "

دکابل دعالمانو شکست خورده کانفرانس

دامریکا په مات شوی تکبر یو حجاب اچول وو



امریکایې فتنې او دسیسې !

په هندوستان کې افغانانو ته دمسیحت دامونه !

نامهء یک زن مسیحی به زنان مسلمان

نشست وزراء دفاع کشورهای ناتو ،آغاز ازهم پاشیدن ناتو بود



دیرغلګرو ترمینځ دیووالي روحیه نړیدلې...

دافغانستان پر اقتصاد داستعمار اغیزې



علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه



## سرلیک

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| 1 | سرليکنه ............................. | 1 |
| 2 | امريکايي فتنې او دسيسې ...................... | ۲ |
| 3 | دیرغلګرو ترمنځ ديو والي روحيه نړېدلې ............. | 4 |
| 4 | نشست وزرای دفاع کشورهای ناتو آغاز ازهم ......... | 6 |
| 5 | فرمان اخير کرزی درمورد شکنجه زندانيان ......... | 8 |
| 6 | مسلمان او نوروز ............................. | 10 |
| 7 | داده پر مختللې ټولنه اودمشرانو قدر ............... | 14 |
| 8 | نامه ای يک زن مسيحی به زنان مسلمان ........... | 18 |
| 9 | شيخ التفسير و.....مولاناعنايت الله برهانی سره مرکه | 22 |
| 10 | په افغانستان يرغل ، امريکا ، ايران اوشمالي امريکا.. | 35 |
| 11 | په هندوستان کې افغانانو ته دمسيحت دامونه ........ | 37 |
| 12 | جشن نوروز ............................. | 39 |
| 13 | په شعيه مېشتو سيمو کې دلوی تحول څرک ........ | 42 |
| 14 | ګلکڅونه ............................. | 44 |
| 15 | دافغانستان پر اقتصاددا ستعمار اغيزې .............. | 46 |
| 16 | جهاد کې دنظرېې ونډه .......................... | 51 |
| 17 | امريکا په افغانستان کې بشپړه ماتې وخوړه.......... | 55 |
| 18 | کانفرانس علماء ! قبل ازانعقاد ناکام ګرديد........... | 58 |
| 19 | دسوله ساتو وحشت اوجنايت .................... | 60 |
| 20 | پايګاهای نظامی دائمی امريکا، انزوای دائمی........ | 65 |
| 21 | مرکه ............................. | 67 |
| 22 | ديرغلګرو په تو دمجاهدينو ساحه نوره هم ........... | 70 |
| 23 | دجيد اومجاهدعالم مولوي فضل احمد سرخاوی ...... | 75 |
| 24 | خبر اوغبر ګون ............................. | 77 |
| 25 | زياد شدن کودکان معتاد ثمری خدمت ديګری ...... | 79 |
| 26 | جهاد اواجتهاد ............................. | 81 |
| 27 | 350 مليارده افغانۍ کلنۍ بوديجه او200 ........... | 83 |
| 28 | دکمکيانو خبرې ............................. | 85 |
| 29 | توهين به مقدسات وترويج بی بندوباری .......... | 87 |


اتم کال نهمه ګڼه - پرلپسې 73 ګڼه - سلواغه - کب 1391ل، ربیع الثانی1434ق- 2013

امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | 180 افغانۍ |
| پاکستان : | 240 کلدارې |
| امريکا : | 60 ډالره |
| اروپا : | 60 يورو |
| يوه ګڼه : | 15 افغانۍ |
| | 25 کلدارې |

يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې : عابد مجاهد



پتې :

کابل : د څرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم

## سرمقاله :

# دکابل کانفرانس شومې هيلې په نطفه کې خنثی شوې!!!

په دې خبره کې ديوې ذرې هومره شک اوشبه هم نه وه چې په کابل کې په پام کې نيول شوی دعالمانوپه نامه کانفرانس دامريکااوغرب هغه پوچه اوشومه حربه وه چې جګړه يې نوره تودوله اواشغال ته يې نور عمر ببښل غوښتل، خو الله تعالی داستعمار دغه لويه دسيسه داسلام اوافغانستان د مجاهدواوخواخوږو علمای کرامو په عزم اوجرأت دفع اوشومې هيلې يې په نطفه کې خنثی وګرځولې.

دکابل کنفرانس متدصيانو ډير ترکيز په دې کې وو چې دګاونډي هيوادپاکستان، دهندوستان (ديوبنددارالعلوم) دمصر دالازهر جامعې اوهم دسعودي يوشمير ديني عالمان اوپوهان به په کنفرانس کې برخه واخلي اودامريکااوغرب تر ټولو ستر ارمان چې دفدايي عزم مخه ډب کول دی په اړه يوه جعلي فتوالاس ته راوړي!!

خو دافغانستان اوګاونډي هيوادو ښواوځير کوعلمای کرامو، شيوخواومذهبي حلقو داستعمار ددغې ورستی حربې په وړاندې له خپل ايماني اوديني رسالت څخه کارواخيست اوپه ډاګه يې کړه چې دوی به په هيڅ داسې ناسته اوکانفرانس کې برخه وانخلي چې هلته امريکايي اشغال اومظالمو ته په مشروعيت قايليږي دافغانانو قاتلينو اودعفت اوعزت لوټونکو ته برأت ورکوي اودازادی اوخپلواکۍ په ګټونکواتلانو دتروريزم اوافراطيت امريکايي مهرونه لګول کيږي!!

دحقې لارې عالمانود کابل کانفرانس له ډندورچيانو وپوښتل چې کله امريکااوناټودافغانستان په حريم اوحرمت يرغل راوړ هلته دغسې کانفرانس چير ته وواودوی ولې دافغانستان، پاکستان اواسلامي نړۍ له عالمانو پوښتنه نکوله چې دافغانستان اشغال جواز لري کنه؟ امريکا، ناټو اوکرغيړنو متحدينوپې چې پوره ۱۳ کاله په افغانستان کې دلکونوافغانانو وينې تويې کړې اوداسلامي مقدساتواوديني تهذيب يې بيدريغه سپکاوی اوګستاخي وکړه ايااېله اوس دوی ته ديني عالمان اومذهبي کانفرانسونه ورپه زړه شول!؟

دکابل کانفرانس هلې ځلې به هلته دتوجه اومطالعې وړوای چې اشغالګروپه افغانستان کې خپل يرغل ته دپای ټکی ايښی وای اوافغانانوته يې چې په مالي اوځاني ډګرونو کې څومره زيانونه اړولي دهغوتاوان ورکولو ته چمتوشوي وای. مونږ وينو چې امريکااوناټوکه څه هم دخپلويوشمير پوځيانودوتلوخبري په خوله کې اړوي خوپه قاطع ډول بياهم ندی تيارچې دافغانستان اشغال پای ته ورسوي اوافغانان پرېږدي تر څوديوه اسلامي نظام ترسيوري لاندې ارام اوخودمختاره ژوند تير کړي.

اوس که څه هم دکابل دعالمانو! کانفرانس دخپلو شومواهدافوپه ترسره کولو کې له سختې رسوايي سره مخ شو، نه يې دافغانستان جيداومخورعلمای کرام اومشايخ دګډون لپاره قائيل کړل اونه يې هم دګاونډي هيوادونوراواسلامي هيوادونومذهبي اوديني حلقي اماده کړای شوي ترڅوپه کنفرانس کې ددوی له فرمايش سره سم برخه واخلي داسې ويل کيږي چې دکانفرانس مربيان هڅه کوي ترڅودخپلې توطيې غوټه اوناسته له افغانستان څخه بهرپه کوم هيوادکې ترسره اوخلاصه کړي

افغان ولس په ټولو اسلامي هيوادونو غږ کوي چې دافغانستان اوداسلام په ضد دامريکااوغرب دغې حربې اودسيسې ته په خپلو خاورواوهيوادونوکې دجوړيدواجازه اوموقع ورنکړي، ځکه اشغالګر عملاپه افغانستان کې په ګونډو شوي اودتيښتې لارې چارې لټوي اوددغه ډول کانفرانسونو هدف اوموخه داده ترڅو اشغالګرو ته نوروخت ورکړي اوپه فجايعوپې سترګې پټې کړای

# امریکایي فتنې اودسیسې !

حسن خیل

د کابل رژیم امریکایي دلالان په هغه کې دي ترڅو د قضایي مصؤنیت تر حربې لاندې دامریکایي اړو لپاره افغاني اړتیا په ډاګه او د تیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې د هغو په ترسره کړو جنایتونو او وحشتونو پرده واچوي او له افغانانو دا سند ترلاسه کړي چې که په افغانستان کې خارجي یرغلګروهر جنایت او تیری ترسره کړی افغانان پرې کومه نیوکه او اعتراض نلري ، امریکایان که په افغانستان کې پوځي اډې ولري او ځاني او قضایي مصؤنیت ونلري هیڅ مانا نلري ، امریکا د همدې لپاره سخته اړتیا لري ترڅو د خپلو ګوډاګیانو په ژبه دا سې سند ترلاسه کړي چې د هغوی هرې ناروا ته روا ووایي او په هرې کړنې یې سترګې پټې کړي.

په دې سربیره تجربو ښوولې چې امریکایي قواوو د جاپان ، جنوبي کوریا ، المان ، فلپین ، تایلینډ او یو شمیر نور هیوادونو کې چې فیزیکي شتون او پوځي اډې لري امریکایي عسکر په خپلو اډو کې حصار او محدود ندي پاتې شوي بلکې د دغو هیوادونو په داخلي مسایلو کې یې پراخې لاسوهنې کړې او په خلکو یې تیري او ګڼ مظالم سرته رسولې ، سره لدې چې دغه هیوادونه په قوانینو او نافذه امورو کې له امریکایانو سره کومه ستونزه نلري ، ځکه دغه ټول کفري هیوادونه دي خو په هغه سربیره هم د دغو هیوادونو خلک له امریکایي وحشیانو څخه تردوسپوږمو رسیدلي او په جدي ډول غواړي چې امریکایان یې له هیوادونو څخه ووځي.

اوس که امریکایي قوانین او بربنډ فرهنګ یې له اسلامي او افغاني ارزښتونو او رسوماتو سره مقایسه کړو پرته له کوم ابهام څخه جوته خبره ده چې افغاني فرهنګ او اسلامي روایات امریکایي حضور او پوځي ځالي یې په هیڅ ډول نه مني او دیوې لحظې لپاره یې هم نشي زغملای .

نو په صراحت او جرئت ویلای شو چې اصیل اسلامي فرهنګ او دیني ارزښتونه هغه منل شوي وسله او ځواک دی چې افغانانو د هغو په وسیله د تاریخ په اوږدو کې نړیوالې بیلابیلې امپراطورۍ رانسکورې کړې او امریکا او غرب د افغانانو د همدې دیني او معنوي وسلې په درک سره د کاذبې دیمکراسي په نمایش د تیرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې سختې هلې ځلې وکړې ترڅو دغه ځواک ته صدمه ورسوي

او افغانان له معنوي اقدارو خالي او تش کالبوت و د روي خو افغانانو د امریکا زور، ټکنالوجی، حربې او ډالر ټول په لته و وهل او داسې ګوزارېې ورکړ چې اوس په خپله اوباما ناري او سوري وهي چې نور له طالبانو سره جګړې ته ندی تیار او طالبان باید لدوی سره دخبرو اترو له لارې یوه حل او روغې ته ورسیږي.

اوس که څه هم امریکا غواړي ترڅو د خپلو پوځیانو شمیره د روان کال ترپایه نیمایي ته راښکته کړي، خو طالبان باید دې خبرې ته جدي سوچ وکړي چې د ترلینو ډالرو لګښت او د دیرش زرو امریکایي عسکرو مرګ ژوبلې ته په کتو ښایي امریکایان په دغو خبرو کې تر ډېره ځایه صادق او مخلص نه وي او لا به هم دې حد ته نه وي رسیدلې چې دا هرڅه هدر او ابو ته وغورځوي او یوازې د تیښتې لار غوره کړي.

د کاروپوهانو په اند د امریکایانو ترټولو مهمه غوښتنه داده چې په افغانستان کې د راتلونکو پټو او ښکاره شرارتونو لپاره د شیطانت څه ځالي مستحکمې وساتي او هغوی ته بیا قضایي مصؤنیت هم ترلاسه کړي، بله حربه یې داده چې داربکیو (ګلم جمناتو) په څیر د لوچکانو وسلوالې ډلې او لښکرې نورې تقویه او دغه ناخوالې د افغانستان هر کونج او کنارته وغځوي ترڅو افغانان یو په بل وځپي، په عفت او عصمت یې لوبې وکړي او مطلق انارشیزم خپور کړي، بل هدف یې داده چې د پښتو او فارسي، تاجک او ازبک، هزاره او ترکمن مقلد او غیرې مقلد اخ ډوب ته لمن ووهي او داختشاش او بدبینو نوې کروندې وکړي.

افغانانو او جهاد قیادت ته پکارده چې د نړیوال استکبار دغو شومو هڅو ته سخت متوجه ووسي، د کابل ادارې د پلورل شوو اوبې




ضمیره چارواکو په څو جعلي خبرو تیرنه اوځي، د قضایي مصؤنیت حربې، داربکیوالو ملیشو فتنې او د ملي وحدت د شیرازي د نړولو کفري دسیسي ته له هره اړخه ځیر او متوجه ووسي او د نجات لار د اشغالګرو په خلاف د جهاد او ګوزار په موقف او دریځ کې ولټوي.

، وماذالک علی الله بعزیز

# د یرغلګرو ترمنځ د یووالي روحیه نه لیدلې..

دبشیر لیکنه

نن سبا دهر سړي په خوله دا پوښتنه ده : چې په افغانستا کې د ۲۰۱۴ز کال وروسته یو شمېر امریکایان پاته وي او که ټول به ووځي ؟ په همدې موضوع دبحث په غرض څوور ځې وړاندې دناټو په مرکز (بر سلز) کې ددغه سازمان دغړیو هیوادو ددفاع وزیرانو غونډه جوړه شوي وه، څو وخت چې د ۲۰۱۴ز وروسته کوم ، کوم هیوادونه دېته تیار دي چې خپل یوشمېر ځواکونه افغانستان کې پاته کړي ، داچې دبحث په ترڅ کې د دغو هیوادو ددفاع وزیرانو ترمنځ تودي خبري وشوي له امله یې غونډه د کومې نهایي پرېکړې او تصمیم نیولو پر ته پای ته ورسیده.

ښکاره ده چې دناټو غړي هیوادونه نور له جنګه ستړي دي ، هغوئ د ۲۰۱۴ز کال وروسته افغانستان کې دخپلو عسکرو موجودیت له ستونزو ډک ماموریت بولي، له دې وجې هر هیواد په چوپه خوله لګیادیاو هڅه کوي چې د ۲۰۱۴ کال وړاندې خپل عسکر وباسي ، دګډو هیوادو ددفاع وزیرانو دامریکا ددفاع وزیر ته وویل: که اړیتا وي تاسې خپل عسکر پاته کړي! په نورو هیوادو ولې داپېښتې ږدئ ، هم دا وجه ده چې دغونډې په پای کې دامریکا ددفاع وزیر (لیون پنیټا) له شرمه دانظر رد کړ چې ګواکې امریکا پخپلو جنګې شریکانو زور راوړ چې خامخا هغوئ خپل یوشمېر عسکر د ۲۰۱۴ کال وروسته په افغانستان کې پاته کړي ، هغه وویل: په دې غونډه کې دناټو غړو هیوادو دفاع وزیرانو په یوشمېر نورو مهمو مسائلو غږیدل او دیو بل نظرونه یې اوریدل ، دناټو سکر تر جنرال هم ویلې : افغانستان کې دبهرنیو عسکرو پاته کولو اړتیا نه وینې ،له دې وجې دټولو بهرنیو عسکرو دوتو لړۍ پیل شوې

افغانستان کې دهري بلې ورځې په تیریدو په یرغلګرو دمجاهدینو لخوا ددقیقو عملیاتو لړۍ په شدت سره پر اختیا مومي ،په ترڅ کې یې هره ورځ په لسګونې بهرنې یرغلګر او دهغوئ کورنې ګوډاګیان وژل کیږي ، په وروستیو کې دلوګر په برکي برک ولسوالۍ کې یوه اتل قهرمان مجاهد( هیبت الله) پخپل تندریز برید امریکایان او ۱ تنه کورني ګوډاګي عسکر ووژل ،هم دا راز ددغه ولایت په مرکز پل عالم کې دیوه بل استشهادي مجاهد (مطیع الله) لخوا دنظم عامه ګنډک له ودانۍ سره دبارودو څخه ډک موټر په جنګولو کې ۹ ګوډاګي عسکر مړه او ۱۱ ټپیان شول .

دغربي رسنیو دتازه ارقامو له مخې: ۲۰۰۱ ز کال راهیسې تر دې وخته افغانستان کې ۳۱۷۱ صلیبي عسکر وژل شوي دي ، حال داچې داشمېر د اصلي شمېر دارقامو څخه څو واره کم دی، ولې نړۍ کې هیڅ پوځ دجګړې په ډګر کې دخپلو وژل شویو عسکرو اصلي شمېر نه څرګندوي ، په دغو وژل شویو صلیبیانو کې ۲۰۸۲ تنه امریکایان، ۴۴۰ بریتانویان، ۱۵۸ کاناډایان ، ۸۸ فرانسویان، ۵۶ جرمنیان، ۵۲ ایټالویان، ۳۴ ډنمارکیان، ۳۹ استرلیایي ، ۳۸ پولنډي ، ۳۶ هسپانوي، ۲۵ نیوزرلنډي، ۲۰ روماني، ۹ هنګري، ۷ سویډني ، ۵ دچیک جمهوریت ، ۵ لیوبیان ۳ فن لینډیان ، ۲ پرتګالیان ۲ کوریاي ، ۲ البانوي ، دبیلجیم اولیتوانیا یو یو عسکر وژل شوي دي ، سره ددې چې نه خپلواک زرایع او نه هم افغانستان کې دروان جهاد اومقاومت منابع پورتنې ارقام مني ، هغوئ وایي: افغانستان کې دبهرنیو عسکرو تلفات دپورته ارقامو نه په څوواره ډېر دي ، خو دامریکایانو اونور وته پورتنې ارقام هم دزغم وړ ندي ، له دې

شخه علاوه دصلیبي ځواکونو دټپیانو
شمېر دغربي رسنیو په استناد
۲۰۵۵۴ تنو ته رسي ، اودجګړي په
ډګر کې دناروغه شویو عسکرو شمېر
۴۲۲۶ تنه ښودل شوی ، کاناډا چې
۱۵۶ عسکر یې وژل شوي افغانستان
کې یې ۲۰۴۷ تنه ټپیان شوي ، په
ټپیانو کې هم دامریکا سلنه ترنورو
هیوادو ډېره اودرنه ده، دامریکاد
۲۰۸۴ عسکرو وژل کیدو سربیره
۱۸۱۸۸ تنه یې دمجاهدینو سره په
مخامخ جنګ کې ټپیان شوي دي ،
اوزیاتره یې داسې ټپیان شوي دي
چې دټول عمر لپاره معلول اومعذور
دي ، تېر ۲۰۱۲ کال دیرغلګرو لپاره
ترټولو مرګونی کال و ، اوس مهال په
افغانستان کې ټولټال د ۴۹ بهرنیو
هیوادو ځواکونه میشت دي ، چې
پکې ۶۸ زره دامریکا، ۹۵۰۰ بریتانوي
، ۹۹۸ ترکي ، ۱۶۰۱۶ هسپانوي ،
۱۷۷ پولنډي ، ۵۰۰ نیوزرلنډي، ۴۰۰۰
اټالوي ، ۵۸۲ هنګري ، ۴۳۱۸ جرمني ،
۵۴۳ فرانسوي ، ۵۶۷ ډنمارکي ، ۹۵۰
کناډايي او ۵۸۰ بلغاریوي دي،
دحیرانتیا وړ داده چې دیرغل په
لومړیو کلونو کې تر ۲۰۰۵ زېږوري
افغانستان کې زیاتره وژل شوي
امریکایان دي ، خو د ۲۰۶ ز وروسته
چې کله دایساف ځواکونه
دافغانستان جنوب ته لاړل ، ورسره
دهغوئ ځاني تلفات هم پیل شول ،
ددې شخه وړاندې په جنوب کې
یوازې امریکایان میشت وه ددغو
رسنیو له قوله : په ۲۰۰۹ ز کې په

خارجي یرغلګرو ۲۲۲۸ بریدون شوي وه ، چې دا د ۲۰۰۸ ز کال په پرتله ۱۲۰ سلنه زیاتوالی ښیې ، په ۲۰۱۰ ز کې یوازې ۳۳۶۶ امریکایان ټپیان شوي وه ، او داهغه ارقام دي چې خپلواک منابع یې نه مني ، هغوئ دبهرنیو یرغلګرو تلفات ددې شخه څوواره زیات ښیې ، دغه وجه ده چې امریکایان دیوه ټاکلي پلان له مخې لګیادي افغانستان کې ټولوژنې کوي!

هم دا اوس امریکایانو په میدان ورد ګ کې دپرلپسې هزیمت اوشکست غچ اخستو لپاره دولسي وګړو په کورونو دشپې لخوا یرغلونه او داړې غورځول زیات کړي ، هم دار از په ټول هیواد کې یې په افغانانو باندې دظلمونو کچه انتها ته رسولې ، وړاندې په کونړ او دکاپیسا په تګاب ولسوالۍ کې امریکایانو لسګونه کورنۍ دویرونو په ټغر کینولې.

اوس چې له افغانستانه دامریکایې یرغلګرو دوتلو لړۍ پیل شوې، تر ډېره دایتلافي هیوادو ترمنځ دیووالي اوهما هنګۍ روحیه هم نړېدلې دا کار مجاهدینو ته فرصت په لاس ورکوي چې په راتلونکي دوبي کې خپل بریدونه نور هم دقیق اوچټک کړي.

په لومړي سر کې امریکایانو اونور یرغلګرو دیوې لارې په افغانستان یرغل راوړ اوس چې بیرته وځي نوهریو په جلا ،جلا لارو خپل ځواکونه وباسي ، امریکا دپاکستان له لارې خپل پوځي توکي او سامانونو انتقالول پیل کړي ، خواسانه نده چې امریکا دي په دومره لنډ خت کې دملیاردونو ډالرو په ارزښت پوځي توکي وباسي دامریکا یولوړ رتبه جنرال ریمنډ میسن هم مني: افغانستان عراق ندی ، دیته په کتو ددوئ لپاره له افغانستانه دپوځي توکیو انتقالول یو چیلنج دی ، هغه ویلي : مونږ دافغانستان په ګاونډ کې کویت هم نلرو بل دافغانستان لارې اوسر کونه هم خراب دي ، نودومره لوی شمېر پوځي توکي په بیړه وړل ورته ناشوني بریښي

په جنګ کې دامریکا ترټولو مهم ملګری هیواد (بریتانیا) دپاکستان دلارې په مقابل کې دیته ترجیح ورکوي چې خپل پوځي توکي دازبکستان دلارې نقل کړي ، ددې لپاره یې لا وخت په سر دازبکستان هیواد سره تړون لاسلیک کړی دی ، دبریتانیې ددفاعې چارو سکرتر (فلپ هیمنډ) وایي: افغانستان کې ددوئ دپوځې ماموریت دلنډولو وخت راغلی دی ، پریکړه یې کړیده چې ډېر ژر عملیات پای ته ورسوي او خپل ټول پوځي توکي دازبکستان له لارې بریتانیې ته نقل کړي ، ولې ددوئ لپاره دپاکستان لاره خوندي نه بریښي ، درسنیو له قوله : بریتانیا له افغانستانه ۲۵۰۰ موټر او ۶۵۰۰ کانتینرونه دازبکستان له لارې خپل هیواد ته وړل غواړي ، اودڅلور نیم لکه پونډو په ارزښت پوځي توکي به ازبکستان هیواد ته په وړیا تو ګه ورکوي په دې سره څرګندشوه چې امریکا اوبریتانوي ځواکونه سره یوځواک ندي، دتیښتي په حال کې هریو غواړي دبل نه سبقت وکړي داکار مجاهدینو ته فرصت په لاس ورکوي چې دتیښتي په حال کې ترشا په یرغلګرو دعملیاتو لپاره یوه ځانګړې ستراتیژي اوپلان جوړ کړي، څو راغلي بهرني ځواکونه له افغانستانه د داسې ستومانه خاطرو په بدرګه ستانه شي چې دتریخ حماسوي داستان په اوریدو یې راتلونکي کې هیڅ یرغلګر هیوادبیا په افغانستان یرغل ته زړه ښه نکړي.

# نشست وزراء دفاع کشورهای ناتو

# آغاز ازهم پاشیدن ناتو بود

ذبیح الله "مجاهد "

به تاریخ ۲۰۱۳/۲/۲۲ م کشورهای عضوء ناتو به امید اینکه مسئله افغانستان را مکررا زیر بحث قراردهند دربروکسل نشست به سطحه وزراء دفاع این پیمان را دایر نمودند ، درضمن بحث های متعدد موضوع شمار باقی ماندن عساکر خارجی در افغانستان نیز مطرح بود ،کشورهای اروپایی ناتو به این باور بودند که امریکا میخواهد تعداد از عساکر خویش را در افغانستان بعد از سال ۲۰۱۴م نیز باقی بگذارد وشاید در عرصه تمویل وتجهیز خواهان یاری ازهم پیمانان خود شود ، ولی امریکا سعی می نمود که تعداد از کشورهای ناتو را نیز به این مأموریت همچو آغاز حملات بر افغانستان با خود همراه سازد ، تا تلفاتی آتی که نیروهای بیگانه از لحاظ جانی ومالی در افغانستان می بینند مثل ۱۲ سال باهمه اعضاءناتو تقسیم گردد وبر شانه های امریکا گرنگی نه کند ، ولی این پلان امریکا با عکس العمل جدی کشورهای اروپای عضوء ناتو مخصوصا آلمان مواجه گردید ، تا آن که وزیردفاع کشور آلمان به صراحت به آمریکا وانمود کرد که آنها دیگر نه میتوانند مأموریت افغانستان را حتی از لحاظ مالی نیز تمویل کنند چه رسد که عساکر خویش را در آن کشور هنوز هم داشته باشند !!؟، عکس العمل های بعضی از کشورهای دیگر نیز برای امریکا گیچ کننده بود ، بحث این است که امریکا چه گونه توانسته بود از ضعف کشورهای اروپای در مرور دوازده سال گذشته به نفع شخصی خویش بهره برداری نماید و اکنون کشورها به کدام دلیل جسارت مخالفت با امریکا را دریافتند ؟

دوازده سال قبل امریکا یک هیولاء خطرناک در انظار ملتها تبارز کرده بود که جرئت مخالفت از امریکا را هیچ کشور دیگر نداشت ، بلکی مخالفت از امریکا بمعنای بازی خطرناک محسوب میشد که میتوانست به هرابرقدرت دیگرجهان مثل مارحفی گزند رساند ، ولی اکنون طلسم امریکا شکسته ، حیثیت وپرستیژ خویش را باخته و مثل کشورناکام به هر گزینهء ممکن دست می اندازد ، آن هم ازطرف یک ملت ازلحاظ مادی کاملا فقیر ، نادار ، دست وپا بسته ولی با اراده و غیور ، پرافتخار و آبرومند که عبارت است از افغانهای مجاهد وراد مردان تاریخ .

زمانی که غربی ها در افغانستان شکست امریکا را از نزدیک مشاهده نمودند چون خود نیز در جنگ بیگانه ویا بهتر است بگویم جنگ زورنمایی جمهوری خواهان امریکا کرهاً شرکت داشتند ، کاسه امریکا از چلو صاف برآمد و دیده شد که این هیولاء مکار هرگز دارای آن قدرت ، کفایت ودرایت

نبود که جهان قبلا تصور میکرد ، بلکی تنها توَرم تبلیغاتی و رسانی بود که آمریکا کسب کرده بود ، زمان آزمون ومیدان راستین تورم اش مثل پوقانه انفلاق کرد و یک امریکای شکست خورده و عاری از همه کرامت انسانی به زمین خورد ، اکنون آسان است که هرکشور غربی وهم پیمان امریکا هرگز در فکر روابط خویش با امریکایها آن قدر افراط نه کند که منافع خانوادگی خویش را قربانی آنها نماید ، سخنان وزیر دفاع جرمنی حکایت از همچو حالت میکرد که از هرنوع همکاری با جنگ امریکا بعد از سال ۲۰۱۴م ابا ورزید ، وکشور فرانسه قبلا از چنین رویش به جا استفاده نموده بود .

سخنان میان وزیر دفاع امریکا پنیتا و وزیر دفاع کشور آلمان آنقدر به تندی گراید که هم دیگر را تکذیب کردند واین حرکت به سویه بلند سیاسی حالت بدگمانیهای تام را نشان میدهد ، بعدا سخنگوی پنتاگون جورج لیتل به صراحت ابراز داشت که ماموریت بعد ازسال ۲۰۱۴م در افغانستان تنها مأموریت آمریکانه بلکی مأموریت تمام کشورهای ناتو است ، ولی کشورهای ناتو اکنون درک کرده اند که امریکا میخواهد هنوز هم در این جنگ بی مفهوم که اقتصاد ملتهای غربی را از هم پاشید ، تمام کشورهای عضوء ناتو را درگیر نگهدارد ، و موقف کشور جرمنی در نشست بروکسل به صراحت پیام منفی برای کاخ سفید داشت که نه باید اضافه تر از اکنون امید همکاری کشورهای اروپای را بنام های گوناگون داشته باشد !! ، جنگ افغانستان وطولانی شدن آن تمام انرژی امریکا و شرکاء اش را زوب ساخت ، آمریکا وشرکاء مغره اش چندین سال با جنگ راستین مواجه نه شده بودند ، نه هم از مزه مرگ وخسارات هنگفت مالی چشیده بودند ؛ ولی اکنون چشیدند و دیدند که این جنگ یک حماقت بود وباید هرگونه ء که میشود به آن خاتمه داد ، کشورهای عضو ناتو که خوشبخاته مشترکاً زیر فشار یکسان اقتصادی وکمرشکن هستند ،دیگر تحمل این جنگ برای آنها بی هوده است ، پس باید به سرخمی به آن وداع گویند ، ولی تنها امریکا روی خجالتی بیش از حد خویش نه میتواند به یکبارگی افغانستان را ترک کند !!!.

از همین رو رئیس جمهور امریکا اوباما به نمایندگی !!؟ از تمام کشورهای عضوء ناتو به اداره کابل وعده سپرد که آنها ۳۵۰۰۰۰ عساکر اداره کابل را برای **۵** سال دیگرنیز تمویل میکنند ، ولی مخالفت کشور جرمنی به صراحت نشان میدهد که اوباما میخواهد به شکل کاذبانه اداره کابل را از تمام کشورهای اروپایی مطمئن سازد ، درحالی که وزیر دفاع جرمنی وشماری دیگر نماینده گان اروپایی ابراز داشتند که اروپا خود دوچار بسا مشکلات اقتصادی داخلی است که نه می تواند من بعد تمویل نیروهای اداره کابل را هم با حجم مذکور آن به دوش گیرد ، همچنان کشورهای اروپای ناتو درنشست بروکسل تمویل اداره کابل را حمایت از یک نظام فاسد وفاقد صلاحیت های کشورداری می دانستند ، ولی امریکا طبق یازده سال قبل به این باور بود که حمایت از اداره کابل ، حمایت از جنگ نافرجام آغا شده خود آنها است ، ولی چیزی که روشن است آن درگیرماندن همه کشورهای ناتو در حالت بدتر اقتصادی است که اگر خواهند یا نه خواهند جنگ افغانستان ویا بهتر است بگویم جهاد ومردانگی مردم افغانستان توانست اوتوریته وپوتنسیال جهانی امریکا وسائر مستکبرین را بر زمین لگت مال نماید .

در مورد شکنجه زندانیان افغان

# فرمان اخیر کرزی خنده آور است...

عبدالرحمن الرحمن درانی

باکمال تاسف باید گفت که غربیها و مزدوران آنان در داخل افغانستان از همه خطوط سرخ حقوق بشر و انسانیت تخطی نموده اند زیرا نهادهای حقوقی گوناگون بین المللی و محلی شاهد بر آن است که هم امریکائیهای ظالم و سفاک و هم مزدوران سست عنصر آنان در شکنجه زندانیان زندانهای داخلی و خارج از کشور دست دراز دارند و حتی تعداد زیاد این زندانیان مظلوم در اثر شکنجه جان از دست داده و بخالق حقیقی خود پیوسته اند.

ولی جای تعجب دیگر اینست که چند روز قبل به اصطلاح رئیس جمهور نام نهاد و فاقد صلاحیت افغانستان کرزی یک فرمان به اصطلاح فوق العاده را به لوی سارنوال صادر نموده تا کسانی را تحت تعقیب عدلی قرار دهند که در شکنجه زندانیان دست داشتند ، سوال درینجاست که آیا کرزی پیش از این اگاهی نداشت که در زندان های افغانستان چه میگذرد ؟ در جواب گفته میتوانیم که بلی ! کرزی خوب خبر داشت که در زندانهای مختلف افغانستان شکنجه های غیر انسانی برضد زندانیان به شدت جریان دارد ولی متاسفانه تا این وقت نهادهای حقوق بشر آزاد بین المللی راپور موثق را درباره وضعیت رنجبار و تاسف آور زندانهای افغانستان به نشر نه سپرده بودند و نه هم رسانه ها از آن پرده برداشته بودند ، حالا که راپورهای آزاد سازمان ملل به نشر رسید پس از مرور و گذشت سیزده سال ظلم و فرعونیت کرزی مزدور بخاطر خاک انداختن در چشم افغانها و جهانیان فرمان را صادر مینماید که از شکنجه زندانیان حرف میزند و میگوید که باید از آن جلوگیری صورت گیرد ، در حالیکه ما به یقین کامل گفته میتوانیم که فرمان اخیر کرزی فقط معنی نمایشی و فرمایشی خواهند داشت و به نظر نمی رسد که کدام تغیر دلخواه در وضعیت زندانیان مظلوم افغان وهم به اصطلاح تغیری درسیاست و استراتیژی ارگانهای امنیتی مزدور کابل رونما گردد.

زیرا درین ارگانها کسانی وجود دارند و ایفای وظیفه می نمایند که به احزاب ملحد کمونیستی خلق و پرچم و هم شورای نظار و جنبش ملیشه های سفاک گیلم جم و حزب وحدت ارتباط عمیق و وثیق دارند.

فلهذا فرمان کرزی نسبت به این ضرب المثل عربی( لایقدم ولایوخر) نه پس میکند ونه پیش صدق میکند بلکی این فرمان بخاطری صادر شده تا فشار عسکری از سوی مجاهدین علیه رژیم کرزی و هم

باداران اشغالگر او کاهش یابد ، درحالیکه باید فشارهای عسکری و تبلیغاتی علیه امریکایان وهم مزدوران آنان شدید ترشود افغانها از ظلم آنان نجات کامل یابند.

غرض دیگر کرزی از صدور این فرمان اینست که کرزی بتواند ابروی ریخته شده خود را تا حد ممکن عوض کند و راه را برای انتخاب مجدد دوره سوم انتخابات دروغین هموار سازد در حالیکه مردم افغانستان وحتی کسانی که کرزی را تمویل می نمایند درک کرده است که دیگر این انسان ضعیف النفس و ضعیف الاراده نمی تواند حکمروایی سالم را به پیش ببرد زیرا اداره کرزی از الف تا به یا غرق درفساد اداری واخلاقی می باشد.

شکنجه در زندانها افغانستان و سرقت اموال خزانه دولت و فساد اخلاقی در دوایر مختلفه این دولت به اوج خود رسیده وهیچ انسان عاقل و منصف از آن انکار کرده نمی تواند ، فلهذا صدور فرمان کرزی برای کاهش از شکنجه زندانیان در زندانهای مختلف افغانستان جز (حبر، علی الورق) یعنی رنگ بالای ورق سفید معنی دیگری ندارد.

به عبارت دیگر اداره کرزی به رضا و خوشنودی خود و بادارانش از طرف کسانی گردانیده میشود که یا کمونستان ملحد قسم خورده و دیروز هستند و یا هم فرومایگان اتحاد نامقدس شمال و غلامان نوین ایتلاف کفر جهانی و صلیب می باشند از این جا میتوانیم گفت که صدور این فرمان علیه کرزی کسانی که زندانیان را شکنجه نموده اند فقط و فقط یک درامه نو کرزی به حساب می رود زیرا اسدالله سروری کمونست سابق و رئیس (اکسا) یا خاد دوران کمونستی که قاتل هزاران تن مجاهد و مظلوم شناخته شده هنوز در رعایت کرزی و اندیوالانش زنده و بدون محاکمه بسر میبرد.

وچیزی دیگری که باید ملت مسلمان افغان و بالخصوص مجاهدین سربکف سنگرهای داغ جهاد و مقاومت متوجه آن باشد این است که کرزی نباید از مسؤلیت بزرگی که در مقابل کشتار دسته جمعی و بمباردمان ملت مظلوم افغان ما داشت و با کمال خون سردی و بی غیرتی امریکایان و صلیبیان را همراهی نموده و در کشتن و شکنجه جوانان، پیرمردان و پیرزنان و اطفال دست داشت نباید به این چند سخن متحد المال و منافقانه بخشیده شود و از آن انتظار کبوتر سفید صلح ساخته شود و خون هزاران تن مجاهد و مردم بی دفاع ما رایگان و هدر برود.

نخیر ! باید از اشتباهات که در دوران جهاد قدیم (جهاد علیه روسها ملحد ) صورت گرفته بود تکرار نشود در آن زمان کمونستان محاکمه نشدند که امروز همان کمونستان دیروز در محاکم قضایی ، امنیتی، و استخباراتی کرزی ایفای وظیفه می نمایند ومجاهدین ما را محکوم به مرگ و اعدام می سازند . بهمین خاطر باید جنایتکاران در اداره کرزی و خود کرزی طبق حکم الله و رسول عادلانه محکمه شود تا عبرت شود برای دیگران ، نه اینکه خدانخواسته ما به چند حرکات و اقوال منافقانه این مرد مداری قرن بیست ویکم و غلام فوق العاده صلیب بازی بخوریم، به امید همان روز انتقام عادلانه و طبق شریعت غرای محمدی صلی الله علیه وسلم و به امید پیروزی حق علیه باطل

# مسلمان او

تاريخي څېړنې او پلټنې ثابتوي چې دنوروز ( دهجري لمريز کال ړومبۍ ورځ ) داسلام له مقدس دين سره هيڅ تړاواوربط نلري بلکې له اسلام څخه وړاندې ( زردشتيانو ، مجوسيانو او اتش پرستو ) پوري ځان نښلوي او هم له اسلام دمخه نوروز دايرانيانو داخترونو څخه يو اختر بلل شوی چې متاسفانه دغه عقيده او دود اوس هم په نوموړي هيواد اوشاوخوامليتونوکې خاص ځای او درناوی لري

نوروزچې په هرهدف اودليل وي نمانځنه يې ناروا اوله حرمت څخه خالي نده ، ځکه دغه ورځ دمجوسي کفاروله اخترونوڅخه شميرل کيږي ، له همدې امله ددغې ورځې درناوی اوتجليل که څوک ديني رنګ ورکوي يامليي اوتفريحي شکل له شک پرته يوحرام عمل دی ځکه دکفارود اخترونوپه ورځوکې خوشالي اوتفريح هيڅ شرعي مجوز نلري.

داسلام دمقدس دين په راتګ اوځليدادمجوسيانوپه ګډون ټولوجاهلي اوغيرې اسلامي رسوماتواوعاداتوته دپای ټکی کيښودل شواومردودوبلل شول چې يوله هغوڅخه نوروزهم دی، په عوض اوبدل کې يې داسلام اوبشريت لارښودپيغمبرصلی الله عليه وسلم دوه اخترونه( دوړوکي اولوی اختر ) ورځې اوديني خوشحالی په نښه اوولورولې ترڅومسلمانان په دغودواخترونواومبارکوورځوکې له متعال خدای څخه برکتونه وغواړي اوله عفوې او مرحمت نه يې برخمن وګرځي.

په هغه صحيح اومبارک حديث کې چې له انس رضی الله عنه څخه روايت شوی داسې راغلي «قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَمَ الْمَدِينَة وَلَهُمْ يَوْمَانِ يَلْعَبُونَ فِيهِمَا ، فَقَالَ: مَا هَذَانِ الْيَوْمَانِ ؟ قَالُوا : كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا فِى الْجَاهِلِيَّة. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَمَ: (إِنَّ اللهَ قَدْ أَبْدَلَكُمْ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا : يَوْمَ الأَضْحَى ، وَيَوْمَ الْفِطْرِ). ابوداود ( 1134 ) او نسائی ( 1556 ).. صححه الألبانی فی

خبيراحمد

السلسلة الصحيحة ( 2021).

یعنې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ، چې کله مدینې منورې ته هجرت وکړ دهغه ځای خلکو دخوښۍ دوه ورځې لمانځلې او میلې به یې پکې کولې ، رسول الله صلی الله علیه وسلم له دغو خلکو پوښتنه وکړه چې تاسې ولې او دڅه په بنیاد ددغو دوو ورځو درناوی کوئ ، هغوی ورته وویل چې مونږ به دجاهلیت په وخت کې ددغو دو ورځو تجلیل او پکې به مو لوبې کولې ، حضرت رسول صلی الله علیه وسلم ورته په خطاب کې وفرمایل: خدای تعالی مونږ مسلمانانو ته دهماغه دوو ورځو په ځای دخوښۍ دوه نورې او بهترې ورځې چې یو یې دوړوکي اختر او بله یې دلوی اختر ورځې دي لورولې

که پورته حدیث ته وګورو رسول صلی الله علیه وسلم ، خلکوته په مطلق ډول اجازه ورنکړه چې په دغودوروځوکې خوشحالیانې وکړې او یایې درناوی وکړي ، یعنې نه یې دتفریح اجازه ورکړه او نه یې هم دتجلیل او نمانځلو ، نو مسلمانان که څه هم من حیث مسلمان په دیني او عقیدوي لحاظ دنوروز تجلیل نکوي خو که دتفریح او سیاحت په نیت یې هم کوي اسلام ورته اجازه نه ورکوي ځکه چې بیا له کفاروسره دمشابهت ویره پیدا کیږي ده او په یوبل مبارک حدیث کې راغلي چې «من تشبه بقوم فهو منهم» رواه أحمد وغیره بسند جید ( یعني څوک چې له یوقوم سره په څه کې مشابهت کوي هغه لدوی څخه ګڼل کیږي ) او مشابهت له کفاروسره ددې سبب کیږي چې له هغوی سره یې دمحبت او دوستي رېښې وزغلیږي او له کفاروسره محبت او دوستي مسلمان بالاخره په کفرورګډوي.




حکیم ابو ریحان البیروني ،چې په 430 ق کال زیږیدلی او دڅلورم قرن نامتو ریاضیدان او د اسلامي تمدن د احیاء مشهوره څېره تېره شوې. دنوروز په اړه داسې وایي: نوروز نمانځنه له هیڅ الهي دین او عقیدې سره تړاو او رابطه نده لرلې ، هغه وایې ایرانیانو له اسلام څخه دمخه دځینو اوهامو او خرافاتو او ګمراه کونکو رسمونو او رواجونو په سلسله کې نوروز نمانځنه پیل او یوه عقیدتي بڼه یې وروبښله چې دالبیروني په قول دنوروز دپیدایښت لړۍ دزردشتیانو له زمانې او دایران دجمشید پاچا له دورې څخه سرچینه واخیسته ، دحکیم البیروني په نظر زردشتیانو دخپلې واکمنۍ او بیا ورسته پیروانو یې دنوروز د دود پالنې او ساتنې ته کلک وفادار او پابند پاتې شول او یو کال یې هم ددغې ورځې له تجلیل نه سر نه غړاوه ، البیروني وایې ځینې زردشتیان

داسې هم وو چې دلمریز کال په رومبۍ نېټه ( سپیده داغ ) به یې ددرناوي لپاره په خپلو کورنو او ځایونو کې اورونه بل کړل او هغه یې نوروز نمانځنه بلله.

## داسلام مقدس دین او نوروز !

اسلام هغه مقدس او جامع دین دی چې په خپلو ټولو ابعادو او جهتونو کې که هغه عبادات ، اعتقادات او معاملات دي په اړه یې خپل مشخص هویت او منونکې فلسفه لري. متعال خدای جل جلاله فرمایي ( والذین لایشهدون الزور ) ژباړه دخدای تعالی خاص بندګان هغه څوک دي چې دباطلو په مجالسو کې برخه نه اخلي (الفرقان ۷۲ سورت ) دلته دشهود معنا مفسرین حضور اخلي ، ځکه دغه ډول مجالس زړه او روح ته له ګندګي او ګناه پرته بل څه نه لوروي ! مجاهد ، ربیع بن انس ، قاضي ابو یعلی ، ضحاک ، ابو العالیه ، طاوس ، ابن سرین او ابن عباس رض او نور مفسرین او فقهاء دپورته ایت شریف تفسیر داسې کړی چې له ( زور ) څخه مراد دمشرکینو اخترونه او دخوښۍ ورځې دي (تفسیر قرطبي ج7 ص54. روح المعاني جزء 19 ص51، ابن کثیر ج: 3 ص328. الدر المنثور جزء: 5 ص80... )

دمرقات المفاتیح صاحب او مؤلف او دابو داود محشي دالمحیط قاموس نه په نقل وایي چې دجاهلیت ددورې دخوښیو او اخترونو له ورځو نه مراد ( نوروز او مهرجان ) دي. همداډول له ابن عمر رض څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: («من تشبه بقوم فهو منهم». رواه احمد و ابوداود.ژباړه: هرڅوک چې مشابهت وکړي له یو قوم سره ، نو هغه کس له همغه قوم څخه دی ( یعني له هغه قوم څخه شمیرل کیږي ) ابن کثیرویلي: پورته حدیث سخته نهي ، تهدید او دعذاب وعده دهغه چا په حق کې کړې چې ځان دکفارو په څېر جوړوي ، یعني په اقوالو ، افعالو ، لباس ، خوښیو ، اخترونو او نورو هغو شیانو کې چې شریعت دهغه منع فرمایلې (تفسیر ابن کثیر، ج 1 ص197 )

په همدې ډول یهود ، نصارا او مجوسیان په هغه صورت کې چې جزیه به مسلمانانو ته ورکوي اجازه لري ترڅو خپل اخترونه دمسلمانانو په ځمکه کې ترسره کړي ، خو ددې په څنګ کې مسلمان ته روا نده چې دهغوی په دغو اخترونو کې برخه واخلي ، دحضرت عمر رض ارشاد او دصحابه و او ټولو فقهاو اتفاقي قول دی چې اهل ذمه ( جزیه ورکونکي کفار ) به په دارالاسلام کې خپل اخترونه او نورې ورځې علنې نه ترسره کوي ، نوچې اهل ذمه وو ته دغه اجازه نشته ، نو هغه چاته چې ځان مسلمان ګڼي او بیا دکفارو او مجوسیانو اخترونه په خپله لمانځي او یاورسره مشابهت کوي دهغه به څه حکم او حالت وي ؟

همدارنګه له حضرت عبدالله بن عمر رض څخه روایت دی وایي (من مَرّ ببلاد الأعاجم فصنع نیروزهم و مهرجانهم و تشبه بهم حتی یموت وهو کذلک حشر معهم یوم القیامة). بهیقی باسناد جید ژباړه: هغه څوک چې دنوروز او دنورو غیراسلامی اخترونو او ورځو دتجلیل په خاطر نامسلمانو هیوادونو ته سفر وکړي او دهغوی په مذهبي خوښیو کې شریک شي او دهغوی په څیر ځان جوړ کړي اوبیا په هماغه حالت کې مړشي ، حشر به یې په ورځ دقیامت له هغوی سره وي. له پورته قراني لاربښوونو ، نبوي ارشاداتو او دصحابه کرامو او فقهاوو له اقوالو ښکاري چې نوروز له اسلام سره هیڅ اړه او رابطه نلري ، نوچې اسلام دنوروز په څرګندو ټکو مخالفت کوي نو بیا افغانان په کوم بنیاد او اصل

نوروز دخپل افغاني فرهنګ جز شمیري او حتی اوس یې دملي ورځې په توګه پیژني ؟

معلومیږي چې که مسلمانان دنوروز تجلیل او درناوی کوي نو دزردشتیانو ، مجوسیانو او یا له اسلام څخه دمخه ګمراهانو ناولی تقلید او پیروي کوي ، نو په دغسې حالت کې که څوک قصدا دغه لمانځنه سرته رسوي ؛ نوویره ددې ده چې دغه خلک داسلام دسپیڅلي دین څخه منحرف شوي ( العیاذ بالله ) ځیني نافهمه خلک وایي چې دوی هغه نوروز نه لمانځي کوم یې چې مجوسیان او زردشتیان ورته عقیده لري ، بلکې دوي صرف دکال اوله ورځ تجلیلوي ، دوی ته باید وویل شي چې که تاسې په رښتیا دپسرلي راتګ څخه استقبال کوئ نو څه مجبوریت لرئ چې دغه استقبال دمجوسو او اتش پرستو له نوروز سره یوځای او غاړه په غاړه سرته رسوئ ، په همدې ورځ په مزا رکې دسخي جان صاحب جنډه اوچتوئ ، دعاګاني غواړی او نذرونه ږدئ.

داسلام لوی فقیه او محدث علامه ملا علي قاري رح چې دیولسم قرن دمجدد په توګه یادیږي وايي : هرهغه څوک چې دنوروز په ورځ یو چاته دتحفې او ډالۍ په شکل کې یوه هګۍ ورکړي دکفر ویره یې ده ، ځکه دغه کس دمجوسیانو او اتش پرستانو تقلید کوي او په لوی لاس ځان دهغوی له جملې څخه شمیري. همداراز ابوحفص بخاري حنفي رح چې په 150 هجري قمري کې په بخاراکې زیږیدلی او دامام بخاري رح داستادانو له جملې نه حسابیږي او فقها او محدیثن یې د ماوراء النهردعلامه اودمشرق فقیه بولي وايي: که یوه کس پنځوس کاله دخدای جل جلاله په وحدانیت کې تیرکړي وي خو دنوروز په ورځ کې لدې وجې چې دنومورړي ورځې لمانځنه وشي نو کوم مجوس او زردشتی ته په تحفه کې یوه هګۍ ورکړي پرته له کوم شک او تردد نه ددغه پنځوس کلن مسلمان ټوله مسلماني دړې وړې ، عبادات یې هدر او داسلام له دایرې نه خارج وګرځید.

**پایله :**

هغه کسان چې له لیرې لیرې ځایونو څخه مزارشریف او یانورو ځایونو ته دنوروز په ورځ سفر کوي او دسخی جان دجنډې دپورته کولو په مراسمو کې په همدې ورځ برخه اخلي ایا دوی کوم شرعي دلیل او مجوز لري ؟

دوی په استدلال کې کوم مبارک ایت ، حدیث شریف ، اجماع ، قیاس ، دکوم صحابي ، تابعي او مجتهد قول وړاندې کولای شي؟

بله خبره داده چې دغه ډول سفر دثواب په نیت پرته له دریو جوماتونو ( بیت الله ، مسجدنبوی ، او مسجد اقصی ) ته نور هیڅ دیني حکم او مجوز نلري ، دمزار شریف دجنډې برخوال دې ووايي چې دوی بیدریغه لګښتونه کوي ، دنوروز نارواوو ترځنګ دموسیقۍ او نڅا په کانسرتونو کې شریکیږي او یایې ویني دوی دغه سفر ته پرته له معصیت او دشریعت غراء محمدي له اوامرو څخه نافرماني او دکفارو او زردشتیانو له مشابهت نه بل څه دلیل درلودلای شي.

# داده پرمختللې ټولنه او د مشرانو قدر !؟

شهيد زوی

د جاپان د مالي
وزير ((تاروآسو )) ويلي دي
چې په جاپان کې د زيات
عمر لرونکو افرادو په
شمېر کې ډېر زياتوالی
راغلی دی ، د دوئ
د خوراک ، څښاک
او درملنې ټول
لګښتونه
د دولت پر
غاړه دي
چې
د هېواد د کلنۍ
بوديجې يوه ستره برخه په
دې لار کې په مصرف رسېږي
، له شک پرته داد دولت
پراوږو يو ستربې ګټې بار
دی نو دا زاړه تنان بايد ومري
او دولت يې مړينې ته
پرېږدي ، ،

داد زړو وګړو نه د ځان
خلاصولو ډېر په زړه پورې
منطق دی !؟ ديو شرقي
پرمختللي هېواد د وزير په
سويه د لوړپوړي چارواکي
دې څرګندونو څه ډېر حيران
کړم او د مشرانو د قدر
او احترام په اړه د څو کلونو
وړاندينۍ ژوندۍ خاطرې
مې رامخې ته شوې

زموږ د محترم پلار د
شهادت نه پس مو چې مور
راته توري کوځۍ سپينولې او ترڅنګ يې د هجرت په سختو شپو ورځو
کې زموږ سالمه روزنه کوله نو د کتاب ، مدرسې ممبر او محراب سره د
رابطې په برکت زموږ په زړونو کې د هغې ډېر قدر و خو دا
قدر په زړه زړه کې و ، يو نشيط او زيرک مسلمان
بچی چې بايد په کورني ژوند کې مور او پلار
ته د هغوئ د خوشالو په موخه کوم
تصنعي احترامات وړاندی
کوي موږ يې د ښکاره
کولو وړتيا
نه
لرله
ځکه
چې
يو خو مو د خپلې مور
سره بې تکلفي کمه وه او بل په
زيګ محيط کې راستر شوي وو نو نه به
مو په خبرو کې مور ته مورجانې مورجانې او بلې
صيب ويلی شو او نه به مو په عمل کې د هغې د لاسونو ښکلولو
، ورته د چپلکو سمولو او يا ورسره ترتشنابه د لوټې وړلو جرأت کولای
شو خوتر خپل توانه مو د هغې د خوشالولو هڅې کولې ، هغې به په لمونځ
کې دادعاډېره کوله چې حج ته مې بوځې او شهادت رانصيب کړې خو چې
د جنګ ډګر ته سپين سرې ميرمنې هم نه بوتلل کېدې او زموږ اقتصادي
حالت هم چندان ښه نه و نو د والدې دا دواړه اميدونه په ښکاره نه پوره
کيدونکي ښکارېدل

شپې ورځې تېرېدلې او په وطن کې يو په بل پسې تيز بدلونونه
رامنځته کېدل چې خبره د اسلامي امارت تر سقوطه راورسيدله ، وطن
بهرنو يرغلګرو اشغال کړ او پر هېواد لاسپوڅې اداره مسلطه شوه ، په
ټول افغانستان او خصوصًا کابل کې د کورونو او ځمکو نرخونه ډېر لوړ
شول ،موږ چې په کابل کې يوه نومره ځمکه درلودله په همدې لوړو
نرخونو کې مو وپلورله ترڅو يې په تر لاسه شويو پيسو والده حج ته

ولیګو او یو څو نورې
اړتیاوې پرې هم پوره کړو ،
د ورونو مې پر ما نیک
ګومان و نو په دې هیله چې
تر نورو به ځه د والدې ښه
خدمت وکړای شم د حج په
سفر کې یې ورسره زما د
ملګرتیا پرېکړه وکړه سره
لدې چې حق مې د ورونو و
ځکه چې تر ما ټول مشران
وو ، ددې مبارک سفر لپاره
له اړینو ټولو مراحلو تېراو د
کابل هوایي ډګر ته داخل شو
،دلته له انتظار د پاره د
ودرول شوې خیمې تر څنګ
عارضي تشنابونه جوړشوي
وو چې مخې ته یې داودس
لپاره لوټې هم پرتې
وې، میرمنو او سړو هر یو به
دلته اودس او په خېمه کې
دوه رکعته لمونځ کولو ځه او
مور مې هم د اودس لپاره له
خیمې راووتو ، لوټه مې د
اوبو نه ډکه او تر تشنابه مې
دمور سره یوړه،دا به غالبًا
په خپل عمر کې ړومبی ځل
و چې تر تشنابه مې د مور
سره لوټه وړله نو په زړه کې
ډېرخوشاله وم چې ګواکې په
دې سفر کې دداسې خدمت
موکه راپه برخه کېږي چې
کور کې ترې بې برخې وم ، له
ځانه سره مې ویل دا مې لویه
خوشبختي ده ، خو چې بېرته راستون شوم نو یو تن مې ولیدلو چې په یو
لاس یې د خپلې سپین سرې مور پښې وینځلې او په بل لاس یې ورته اوبه
وراچولې، ځه ددې حالت نه ډېر اغیزمن شوم او وژدان په دې ملامته کړم
چې تر تشنابه لوټه وړل هم ما خدمت ګڼلو خدمت خو دادی ،کله چې مور
خېمې ته بېرته راغلو ما ددغه تن سره تعارف وکړ هغه وویل ځه د ننګرهار
د بهسودو ولسوالۍ اوسیدونکی او هورې په یو مکتب کې معلم یم، ما
ورته وویل والده مو ډېره کمزوری ده ، ارمان چې لس کاله وړاندې مو
حج ته بوتللې وای ! هغه وویل لس کلونه وړاندې مور ډېر غریب وو ، یو
کشر ورور مو لندن کې دی،هغه ته چې اوس اوس د کار کولو اجازه
ورکړل شویده لږې پیسې یې ګټلې وې نورې یې له چا نه په پور راخستې
او زمور د حج لپاره یې راستولې دي، هغه ټینګار کاوه چې خامخا سږ
کال حج ته ولاړ شئ ځکه چه داسې نه والده مو وفات شي بیا به مو زړه کې
د تل لپاره دا ارمان وي چې والدې مو حج ونکړ او داسې رانه ولاړه.

مور او معلم صیب په یوې طیارې کې و نو مدینې منورې کې مو
ړومبۍ ۸ ورځې هم په یوې پلازې کې وې، کله چې ورسیدو په سبا معلم
صیب سیم کارت واخست، موبایل ورسره خپل و خو په کارولو یې نه
پوهېدلو نو زمور اطاق ته راغلو ما ته یې د بیرون راوتلو اشاره وکړه ،
چې ځه چې راووتم راته یې وویل دا سیم راته موبایل کې واچوه او دې
شمېرې ته زنګ ووهه دا مې د ورور شمېره ده یوائې سلام ورسره کوم او
دلته په خیر خیریت سره له رسیدلو یې خبروم ته راسره ودرېږه تر څو کم
مشکل پیدا نه شي ځه ورسره ودرېدم د سلام د تبادله کولو نه پس مې په
موبایل کې په زړې غوني آواز واورېدل چې مادر جان خوب هست؟معلم
صیب په ژړا شو او ایله یې همدومره وویلی شول ،، بلی بیخي خوب هست
!

ددې نه پس مو دمعلم صیب لندن میشتي ورور ته زنګ وواهه چې
د سلام نه پس د مور په پوښتنې دواړو ورونو ښه ډېر وژړل.

د یوې ضعیفې سپین سرې سره د خپلو بچو د محبت عقیدت او
قدر دې مناظرو پر ما ډېر جور اثر وکړاوله همدې ځایه مې په مسلمان
ملت کې دلو یانو دقدر خبرې ته ډېر فکر شو د ۸ ورځو په جریان کې به
مې چې د مدینې په لارو کوڅو کې لیدل چې هر کشر به په ډېر قدر او
احترام خپل مشر د مسجد نبوي پر لور روان کړی و نو راته هر یو تن معلم

صیب ښکاریدلو او بیا مکې مکرمې ته په رسیدلو مې چې په مسجد حرام کې کوم مناظر ولیدل نو هغه بیخي حیرانونکي وو ، دلته په صحیح معنو پوه شوم چې د مشرانو قدر څه ته وایې او څنګه کېږي؟

ماچې د مسجد حرام په پورتنو پوړونو کې هر وخت د ځوانو سړو تر څنګ ګڼ شمېر ځواني میرمنې هم لیدلې چې خپل کمزوري مور یا پلار به یې دوه ټیره بایسکل کې سپور د صفا او مروه تر منځ د سعي لپاره روان کړي و او یا به یې د طواف په اراده د کعبې نه اوږد راتاواوه نو ما به ویل چې ټولې نړۍ او بیا په ځانګړې توګه د لویدیځ کوم بوډاګان چې په اولډهاوسونو ( دزړو خلکولپاره ساتنځایونو )کې وراچول کېږي او خپل بچیان ورسره په کال کې ایله یو ځل د کرسمس پر مهال ویني ارمان !چې دوئ دا مناظر لیدلی او په دې پوه شوي وای چې اسلام کې د مشرانو څومره قدر او احترام دی؟

بیا مې چې د ذی الحجې د ۸مې نیټې نه تر ۱۲مې نیټې پورې د مشقت نه په دې ډکو ۴ ورځو کې د هر رنګ ،نسل ژبې او سیمې سره د تړاو لرونکو مسلمانو ځوانانو له لورې په ډېر عقیدت ،مینې او حوصلې د خپلو مشرانو خدمتونه ولیدل رانه یې تیر ټول هېر کړل ،ربښتیا دا ده چې دا خدمتونه خورا ډېر حیرانونکي مثالي او ددې وړوو چې سړې احساساتي کړي نو ځه به هم په ځینو مواردو کې احساساتي شوم او چې به مې کومه میرمن د خپل پلار یا مور په خدمت کې ولیدله نو بې احتیاره به مې ورته له سترګو اوښکې روانې شوې.

سره له دې چې د ناپوهۍ یا د غربي کلتور دربنو د خپریدا او د خپل اسلامي ثقافت نه د لریوالي له امله په اسلامي نړۍ کې هم ګڼ شمېر داسې وګړي شته چې د ضعف حالت ته رسېدلي مشران په خپلو اوږو بې ګټې بار ګڼي او هغسې قدر یې نه کوي چې یې پکار دی خو د حج په دې مبارک سفر کې مې چې د مشرانو کوم قدر او احترام ولیدلو ګومان مې دا کاوه چې ګینې په نړۍ کې به یو مسلمان هم داسې نه وي چې د خپل مشر قدر او احترام به نه کوي.

هو ! اوس هم دا د خوښۍ ځای دې چې د اسلام په ټولنیز نظام کې د لویانو کوم مقام دی د مسلمانانو قاطع اکثریت دې مقام ورکولو ته ژمن دي زموږ هیواد کې خوله نیکه مرغه چې د ۹٪ نه زیات وګړي په ټولو سترو چارو کې د لویانو پرېکړو ته ترجیح ورکوي او خبرې یې حتمي ګڼل کیږي، په ګران هیواد کې مو چې د اسلام د ټولنیز نظام رښتې مضبوطې دي او خپل افغان کلتور ته مو محترم هېواد وال ژمن دي نو هره کورنۍ د خپلو لویانو شتون د ځان لپاره ډېر ستر نعمت او رحمت ګڼي خو برعکس په لویدیځ کې لویا ن رحمت نه بلکې ستر زحمت او د اوږې بې ګټې بار ګڼل کیږي چې ځوانان یې د ځانونو نه د لرې کولو او لرې ساتلو ډول ډول اقدامات کوي او دولتونه یې په دې لار کې مرسته کوي چې د جاپان دمالې وزیر تارو آسو نوې څرګندونې یې ژوندی بېلګه ده ، هغه تر دې پورې ویلي چې ،،لویانو وګړو ته مړه کېدل پکار دي، ، حال دا چې پخپله د نوموړي عمر هم ۷۲کلونو ته رسیدلی دی د هېواد په سویه دملي ټولنیز امنیت په نوم په جوړې شوې غونډه کې هغه ویلي چې په جاپان کې د زیات عمر لرونکو تنانو په شمېر کې ډیروالی راغلی دی او دوئ د دولت په مرستو ژوند تېروي، د دوئ خوراک ،څښاک، لباس ،هستوګنه او علاج ټول پر دولت دي چې د کلنۍ دولتي بودیجې یوه لویه برخه پر دوئ

مصرفيږي نو دولت بايد دوئ پريږدي چې مړه شي، چې ترڅو دوئ نه وي مړه شوي تر هغې ملي خزانه د دې سترو مصارفو نه نه شې خلاصېداى نو بايد زړو خلکو ته دا اجازه ورکړل شي چې ژر مړه شي،،

د مالي وزير د هغه زړو تنانو ذکر هم وکړ چې ورته هوري ټيوب پيپل ويل کيږي، دوئ پخپله خوراک څښاک نه شي کولاى بلکې د پايپ له لارې ورته خوراک ورکول کيږي، د مالي وزير ويلي چې بايد د دوئ مصنوعي ژوند نور ونه غځيږي.

د تارو آسو ددې څرګندونو په مقابل کې چې ولس سخت غبرګون ښکاره کړ نو هغه وويل چې دا زما شخصي رايه وه، تارو آسو په ۱۹۴۰ کې په جاپان کې زيږيدلې دى او اوس يې عمر ۷۲ کلونو ته رسيږي، نوموړي له دې وړاندې د جاپان لومړي وزير هم پاتې شوى او يو ځل هغه مهال هم د سختو اعتراضونو لاندې راغلى و چې ويلي يې وو،، کوم هيواد کې چې يهودي سوداګر او صنعتکاران مېشت وي هغه هيواد ددې وړ وي چې پر مخ تللى هيواد وبلل شي،، يانې د تاروآسو په اند د پر مختګ معيار د يهودو شتون دى چې دا خبره د هيڅا لپاره هم د منلو وړنه وه.

د يادولو وړ ده چې جاپان کې طبي درملنه او روغتيا يې اسانتيا وې خو را ډېرې لوړې دي او پکې د ودونو رواج ډېر کم او کوچنيان پکې ډېر لږ پېدا کېږي نو پکې دزړو خلکو سلنه ډېره په تېزۍ مخ په لوړېدو ده چې بې له شکه د زړو هېوادوالو دپالنى او درملنې لپاره دملى بوديجې ډېره لويه برخه ځانګړې کېږي ، لکه چې مووويل په جاپان کې کورنى نظام ښخي له منځه تللى ، د ودونو رواج او دکوچنيانو پېدا ايښت پکې ورځ تربلې کمېږي نويو مشرهم داسې نه وي چې دخدمت، پالنې او درملنې لپاره کشرولري نو ځکه ټول په خپل ژوند غځولو کې د دولت مرستو ته اړوي چې له دې نه زاړه وګړي ډېر رنځ وړي او په رواني لحاظ دډېر فشار ښکاروي او پکې ځان وژنې هم ډېرېږي.

**.. دا د خوښۍ ځاى دې چې دااسلام په ټولنيز نظام کې د لويانو کوم مقام دى د مسلمانانو قاطع اکثريت دې مقام ته ژمن دي زموږ هيواد کې خوله نيکه مرغه چې د ٪ ۹۹ نه زيات وګړي په ټولو چارو کې د لويانو پرېکړو ته ترجيح ورکوي او خبرې يې حتمي ګڼل کيږي. په ګران هيواد کې مو چې د اسلام د ټولنيز نظام ريښې مضبوطې دي هره کورنۍ د خپلو لويانو شتون د ځان لپاره ډېر ستر نعمت او رحمت ګڼي**

جاپان چې يو شرقي هېواد دى واکدارانو ته يې دا نده پکارچې د ولس هغه زيات عمر لرونکو وګړو ته په کمه سترګه وګوري چې ددې هېواد او ملت دپرمختګ لپاره يې ډېر زيار ونه ګاللي دي ، بايد واکداران اوپه ټولنې کې بااثره خلک په خپل هېواد کې دشرقي کلتور داحياء لپاره هڅې وکړي دغربي کلتور پرضد اواز پورته کړي ، خپل نوى کول دکورني نظام او دازدواجي رشتو دګټو نه خبرکړي او په دې اړه دشعور راپېدا کولو لپاره سخت او معقول ګامونه پورته کړي نوبيا به نه زاړه وګړي ځان وژنې کوي ، نه به وربانديې دولت لوړو مصارفو کولو ته اړوي اونه به هم کشران دخپلو مشرانو خدمت او پالنه پرځانونو بې ګټې بارګڼي چې پدې اړه دافغانستان په څېر يو غريب هېواد ورته ښه نمونه ده.

# نامه ء یک زن مسیحی به زنان مسلمان

من تو را میبینم ...

من نمی توانم... اما می ببینم که تقریبا هر زنی بچه ای بغل کرده یا اطراف او بچه هایی هستند. می بینم هرچند آنها پوششی محجوبانه دارند لیکن هنوز زیباییشان می درخشد .اما این فقط زیبایی بیرونی نیست ، که متوجه آن می شوم.

من چیزی عجیب در درون خود احساس می کنم:

غبطه می خورم...

اما نمیتوانم چیزی بگویم ؛ فقط قدرت ، زیبایی، عفت و بیش از همه رضایت و شادی تو را تحسین می کنم .آری ، عجیب است اما به ذهن من خطور می کند که تو هر چند تحت فشار اما از ما ، خوشحالتری .

چرا که تو هنوز زندگی طبیعی یک زن را داری. شیوه ای که زنان از ابتدا همواره چنین زندگی میکردند . در غرب هم تا دهه ۱۹۶۰ اینچنین معمول بود ، تا اینکه به وسیله دشمنی مشترک بمباران شدیم.

**از طریق وسوسه**

اما ما با مهمات واقعی بمباران نشدیم ، بلکه با فساد اخلاقی و نیرنگ آلود و زیرکانه از طریق وسوسه بمباران شدیم.

آنها به جای استفاده از بمب افکن ها و جنگنده های امریکایی ، ما را از هالیوود بمباران کردند. آنها می خواهند بعد از آنکه از بمباران زیرساختهای کشورهای شما فارغ شدند ، شما را نیز اینگونه بمباران کنند . نمی خواهم این برای تو هم اتفاق بیافتد .تو هم احساس خفت خواهی کرد همانطور که ما می کنیم. تو می توانی از این بمبارانها دوری کنی ، اگر لطف کنی ، و به ما که از نفوذ شیطانی آنها تلفات جدی داده ایم، گوش کنی.

برای اینکه هر چیزی که از هالیوود می بینی ، مشتی دروغ است ، تحریف است، دود و آینه ها آنها روابط نا مشروع را تحت عنوان سرگرمی بی ضرر جلوه می دهند ، برای اینکه هدف آنها انهدام اساس

اخلاق جوامعی است که تشعشعات و امواج برنامه های سمّی شان را به آنان مخابره می کنند.

ملتمسانه از تو می خواهم سم آنها را نخوری. وقتی که از آن خوردی، هیچ پاد زهری برای آن نیست!! ممکن است نسبتاً بهبود بیابی، اما هرگز همچون قبل نخواهی شد. بهتر است کاملاً از این سم دوری کنی، تا اینکه به دنبال شفا از آسیبهای که بوجود می آورد باشی.

آنها سعی دارند، با فیلم ها و نماهنگهای شهوت انگیز، به دروغ ما زنان امریکایی را شاد و راضی نشان دهند، مفتخر به لباس پوشیدن چون هرزه ها و قانع بودن به نداشتن خانواده؛ و تو را اینچنین وسوسه می کنند.

اکثر ما شاد نیستیم، به من اعتماد کن! میلیون ها نفر از ما داروهای ضد افسردگی مصرف می کنیم، از شغلهایمان متنفریم و شب ها به خاطر مردانی که می گفتند دوستمان دارند، ولی حریصانه از ما سوءاستفاده می کنند و میروند، گریه می کنیم.

آنها می خواهند خانواده های شما را از بین ببرند. آنها با جلوه دادن ازدواج به عنوان شکلی از بردگی، مادری به عنوان نفرین، و با جلوه دادن با حیا بودن و پاک ماندن به عنوان عقب افتادگی و اُمُلی چنین می کنند. آنها می خواهند خودت، ارزش خودت را پایین آوری و ایمان و اعتقاداتت را از دست بدهی. آنها مانند شیطانی هستند که [آدم و حوا] را فریب دادند، تو فریب نخور!

برای خودت ارزش قائل باش:

من تو را به عنوان گوهر گران قیمت، طلای ناب، یا مروارید گرانبها می بینم، (برگرفته از انجیل متی **13:45**)

همه ی زنان مرواریدهای گرانبهایی هستند، اما برخی از ما در مورد ارزش پاکدامنیمان فریب خوردیم. عیسی گفت: "آنچه مقدس است، به سگان مدهید و مرواریدهای خود را پیش خوک وحشی نیاندازید، مبادا آنها را پایمال کنند و برگشته، شما را بدرند."(متی فصل **۷** عبارت **6**).

مرواریدهای وجودیمان بسیار گرانبها هستند، اما آنها می خواهند به ما بقبولانند که بی ارزش اند. ولی باورم کن! هیچ جایگزینی برای این نیست که بتوان در آیینه نگاه کرد و بازتاب پاکدامنی، نجابت و عزت نفس خود را در آن دید.

مُدهایی که از زیر دست خیّاطان غربی بیرون می آیند برای این طراحی می شوند که به تو بقبولاند که ارزشمندترین سرمایه تو، جذابیت جسمی توست. اما لباسهای عفیف تو و حجاب تو درواقع پرجاذبه تر از هر مُد غربی است، برای اینکه آنها تو را به صورت اسرارآمیزی پوشانده اند و عزت نفس و اعتماد به نفس تو را جلوه می دهند.

جاذبه های جسمانی زن باید از چشمان بی لیاقت پوشانده شود، البته این باید هدیه ای باشد از طرف تو برای مردی که تو را آنقدر دوست دارد و برایت احترام قائل است، که با تو ازدواج می کند. و از آنجا که مردان شما مرد اند و با غیرت و دلاور، حق آنان نیز چیزی کمتر از بهترینی که تو عرضه کنی نیست. مردان ما دیگر حتی پاکدامنی نمی خواهند، آنها دُرّ گرانبها را درک نمی کنند؛ آنها سنگ مصنوعی پر زرق و برق را انتخاب می کنند تا آن را نیز [پس از سوءاستفاده] رها کنند!

گوهربارترین سرمایه های تو زیبایی درونی ات ، نجابتت ، و آنچیزی ست که تو را تو کرده است . اما متوجه شدم برخی زنان مسلمان از حدود تجاوز می کنند و حتی در حین حجابشان سعی دارند تا جایی که ممکن است مانند غربی ها شوند (قسمتی از موهایشان نشان داده می شود ؛ آرایش داشته باشند ...).

چرا تقلید کنید از زنانی که به خاطر عفت و پاکدامنی ازدست رفته شان پشیمان اند یا به زودی پشیمان خواهند شد؟

هیچ جبرانی برای آن ازدست رفته نیست . شما الماس های بی عیب هستید .نگذارید آنها شما را بفریبند و تبدیل به سنگ بدلی شوید . زیرا که هر آنچه شما در مجلات مد و تلویزیون های غرب می بینید ، دروغ است . این دام شیطان است . طلا نمای ابلهان است.

## قلب یک زن

می خواهم تو را به اعماق قلبم راه دهم و سرّی را با تو در میان گذارم ؛ احیاناً اگر کنجکاوی : ارتباط نامشروع قبل از ازدواج چندان هم جالب نیست .ما بدن هایمان را به مردانی دادیم که عاشقشان بودیم ، فکر می کردیم این راهی است تا آنها نیز عاشقمان شوند و با ما ازدواج کنند ، همانطوریکه همیشه در تلویزیون دیده بودیم . اما بدون امنیت ازدواج و علم قطعی به اینکه او همیشه با ما خواهد بود ، حتی لذت بخش هم نیست !! چنین است مسخرگی و وارونگی آن ، فقط یک هدر رفتن است. تو می مانی و اشکهایت.

به عنوان یک زن که با زن دیگر صحبت می کند ، باور دارم که تو این را فهمیدی برای اینکه فقط یک زن میتواند حقیقتا بفهمد در قلب زن دیگر چیست .حقیقتاً ما همه شبیه یکدیگریم علی رغم نژاد ، دین و ملیتمان ، قلب یک زن همه جا یک شکل است. ما عشق می ورزیم ، این کاری است که به بهترین وجه انجام می دهیم . ما خانواده هایمان را پرورش می دهیم، و به مردی که دوستش داریم، آرامش و قدرت می دهیم. اما ما زنان آمریکایی فریب خورده ایم در این باور که ما سعادتمند ترین هستیم چون شغل داریم، خانه هایی شخصی داریم که میتوانیم در آن تنها زندگی کنیم، و آزادی، که عشق خود را نثار هر کس که می خواهیم کنیم.

این آزادی نیست. و آن عشق نیست.

فقط در پناهگاه امن ازدواج است که جسم و قلب یک زن می تواند ، برای عشق ورزیدن احساس امنیت کند . به چیزی کمتر از این، تن نده . ارزش ندارد . تو حتی آن را دوست نخواهی داشت و پس از آن، حتی خودت را هم کمتر دوست خواهی داشت، سپس او نیز تو را ترک خواهد کرد .

## خویشتن داری

گناه هرگز فایده ای ندارد ، همیشه تو را فریب می دهد . هرچند شرافت و کرامتم را باز پس گرفته ام ، اما هنوز هیچ چیزی جای اینکه شرافتم را از اول نمی دادم ، نمی گیرد . ما زنان غربی شستشوی مغزی داده شده ایم که باور کنیم شما زنان مسلمان، مورد ظلم واقع شدید. اما حقیقتاً ماییم که مورد ظلم واقع شده ایم ، برده ی مدهایی هستیم که پستمان می کند ، نسبت به وزن و اندامان عُقده ای شده ایم، و گدای

محبت مردانی هستیم که نمی خواهند رشد فکری یابند [مسئولیت پذیر باشند ]... در اعماق وجودمان می دانیم که سرمان کلاه رفته است.

ما مخفیانه تو را تحسین می کنیم و به تو رشک می ورزیم ، باوجود اینکه برخی از ما آن را اقرار نمی کنیم.

خواهش می کنم به دیده تحقیر به ما نگاه نکنید یا فکر نکنید ما این چیزها را اینگونه که هست، دوست داریم .این تقصیر ما نیست .اکثر ما پدرانی نداشتیم تا وقتی نوجوان بودیم، از ما حمایت کنند چون خانواده های ما متلاشی شده اند .تو می دانی چه کسی پشت این نقشه است.

**خواهران من**، گول نخورید .نگذارید شما را هم بگیرند. پاک و با نجابت بمانید .ما زنان مسیحی، حقیقتاً نیاز داریم ببینیم زندگی زنان چگونه باید باشد .به تو نیاز داریم تا برای ما الگویی ومثال باشی، برای اینکه ما گمشده ایم .پاکی ات را نگه دار.

به خاطر داشته باش، خمیردندان بیرون آمده را نمی شود دوباره داخل برگرداند [آب ریخته شده را نمی توان جمع کرد ]. پس با دقت از خمیرت محافظت کن!

امیدوارم این نصیحت را با همان روحیه ای که نیت شده بود دریافت کنی: روحیه دوستی ، احترام و تحسین.

با محبت از طرف خواهر مسیحیت:

جوانا فرانسیس

Joanna Francis

نویسنده و روزنامه نگار – ایالات متحده امریکا

# رابطه اسلام و ترور ؟؟

چه کسی جنگ جهانی اول را به راه انداخت ؟ مسلمانان ؟
چه کسی جنگ جهانی دوم را به راه انداخت ؟ مسلمانان ؟
چه کسی بیست میلیون از سکان اصلی استرالیا را قتل عام نمود ؟ مسلمانان ؟
چه کسی هیروشیما و ناکازاکی را مورد عنایت بمب اتم قرار داد ؟ مسلمانان؟
چه کسی بیش از **100** میلیون نفر از ساکنان سرخپوست آمریکای شمالی را قتل عام نمود ؟
چه کسی **50** میلیون نفر از مردم سرخپوست آمریکای جنوبی را قتل عام نمود ؟ مسلمانان ؟
چه کسی بش از **180** میلیون نفر از مردم سیاه پوست آمریکا را به بردگی گرفت و حدود **77٪** از آنان را در مراکز کار اجباری به کشتن داد ؟
نه ، مسلمانان چنین نکردند !!
قبل از شروع بحث ارهاب و ترور باید معنای ارهاب و ترور را مشخص گردانید ، اگر غیر مسلمانان خطایی انجام دهند ، تنها خطاست اما اگر مسلمان خطایی انجام دهد تروریست میباشد ؟ باید همه را با یک چشم دید و سپس گفت چه کسانی تروریستهای واقعی میباشند ؟

شیخ التفسیر والحدیث، مولاناعنایت الله برهاني :

# دکابل دعالمانو شکست خورده کانفرانس
# دامریکا په مات شوي تکبر یو حجاب اچول وو

## له حلال رزق نه پرته د نافع علم او د صالح عمل حصول ممکن نه دی

دافغانستان اوسیمې نامتو جیداومنل شوي دیني عالم، شیخ القران والحدیث، علامه مولاناعنایت الله برهاني صاحب (مدظله العالی).

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

دافغانستان اسلامي امارت فرهنګي چارو کمیسون اړونددځرک مجله ویاړي ترخوله تاسوسره دزړه خواله اومرکه ولري، په همدې هیله یوځوپوښتنې دي، باورلروچې په ځوابونوبه موحوصله لوړه اودلوستوالو علمي اومعلوماتي تنده به خړوبه کړی، مننه (اداره)

۱- پوښتنه: جناب شیخ صاحب شک نشته چې علمي حیثیت، نوم اوشهرت مو دتعارف محتاج ندی؛ خو دیوې مطبوعاتي اړتیا په اساس که تاسو درنول وستوالوته دهیوادپه علمي افق کې منل شوی ستوری (ښاغلی برهاني صاحب) ځومره یې چې مناسبه بولی معرفي کړی چې ځوک ده اوچیر ته یې ستر ګي غړولي، خوشاله به شو.

بسم الله الرحمن الرحیم

دافغانستان اسلامی امارت

دفرهنګي کمیسون ریاست او هم دمجلې ملګرو ته

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

وبعد: اول ستاسې د ټولو روغتیا او سلامتیا او په شرعی مقاصدو کې کامیابي او دژوند په هرډګر کې کامراني او ترقي زمونږ دلوی رب العلمین جل جلاله ځخه یواځنی هیله او خواست دی.

دویم: ستاسې د احتراماتو او رالیږل شوی لیک ځخه یوجهان مننه.

دریم: ستاسې ددې علمي او ګران قیمته فکر او سوچ چې د ګران مظلوم جهادي افغانستان د بې سرپرسته پوهانو او علمي اشخاصو په هکله مو کړیدی غیر متناهی (بمعنی لاتقف عندحدٍ) شکریه،

دادی اوس مونږ ستاسې بیش قیمته پوښتنې د ایجاز او اختصار په نظر لرلو سره جوابوو.

د اولی پښتنې جواب: ځما نوم عنایت الله بن الشیخ وزیر محمد بن الشیخ قاضی محمد د کنړ ولایت دوټه پورولسوالی د کټمار قلعه د کلي چې زما ابائی علاقه ده لیکن ځما تولد دلاحسین علاقې بکرو کلي کې شویدی چې دا علاقه د شیګل ولسوالی مربوط ده وجه او علت یې دا دی چې ځما والدصاحب الحمدلله دعلم، حلم، صبر استقامت او د بې بها تجربي خاوند وو چې د کنړ ولایت دلاحسین علاقې تقریباً ۹ لوی کلي دي او تر خنګ یې وړې وړې درې او قریې هم شته دي دوی ټولو په اتفاق سره دخپلې اصلي علاقې ځخه په دعوت راوستلی وویعنې دټولې علاقې لپاره دیوجامع خطیب اومفتي په توګه ځای اوحیثیت لاره، نو دغې علاقې ته زمادوالدینو دراتلو نه بعد مادې تکلیفي او بې وفا او دغمونو او دردونو جهان ته ستر ګی وغړولی، بیا په همدغه ترتیب او مقصد ځما والد صاحب د شیګل علاقې معززو مشرانو رادعوت کړ و د څه مودې په تیریدو سره بیا کمونستي انقلاب منځ ته راغی د شیګل اولنی علاقه وه چې مسلحانه جهاد ئی شروع کړ و او مونږ په

دغه مسلحانه جهاد کې مصروف وود ډاکټر نجیب در ژیم تراخري کلونوپورې بیا بمباری دومره زیاتي شوي چې زندګي او وخت تیرول ګران شو هماغه ووچې مونږ باجوړ ته مهاجر شو او په مشهوره علاقه سلارزو کې مو دهجرت شپې سبا کولې ، لس کاله کیږی تقریبا چې مونږ اوس په مردان کې سکونت لرو( نسأل الله الرضا والعفو والعافیه)

۲ - پوښتنه : :
ښاغلی برهاني صاحب ، دخپلو زدکړوپه باب که وضاحت راته وکړی چې رومبنی ، منځنی اوعالي زدکړې موچیرته ترلاسه کړي اودطالبی ټوله موده موځومره وه لطف به مووي ؟

د دویمې پښتنې جواب :
محترم المقام ما ابتدئي زده کړه په سخت جهادي دوران کې دخپل والد محترم څخه پیل ترجمه او تفسیر او د فقهي کتابونه مې تر شرح الوقایه پورې له هغه ولوستل .

او چې کله مهاجر شو نو دد رې کالو درسي کتابونه مې په ۲۵ ورځو کې ووئیل وجه ئې داوه چې باجوړ کې یوه مدرسه وه احیاالعلوم نومیږي په هغې کې درخصتیو وخت و او هلته یو مولنا ددې کتابونو دوره کوله چې د ۲۵ ورځو دوره وه ما هم پکې شرکت وکړو او صرف بهائی نه تر زنجانی او شمې څخه تر هدایه النحو او مفید څخه تر مقامات وغیره وغیره پورې هلته ووئیل او بیا دنوی تدریسي

کال داخله مې په دار العلوم شیر ګړ کې وکړه ، بل کال می په دار العلوم عربیه ګجرات مردان کې داخله وکړه هلته انتهائی مایه ناز اساتذه کرام وؤچې دنحومیر ، صرف ، فقه ، اصول فقه، معانی، ادب، او منطق ابتدایی کتابونه مې هلته وویل بیا مې د منطقو او فلسفی بعضې لوی کتابونه په جامعه محمدیه چراټ کې سر ته ورسول .

بیامې د مستقلې تکمیل درجې کتابونه د منطقو او فلسفی له اصلي ماهر حضرت شیخ علامه عنایت الله چکیسری رحمه الله سره ووئیل . د تکمیل درجی نه بعد مې دوره موقوف علیه یعنی وړې دوري کتابونه الحمدلله په خپله مطالعه حل کړه، او بیامې دوره حدیث شریف لپاره اراده وکړه دار العلوم نیوټاون کراچي ( ۵ ) ته لاړم هلته مې دداخلې امتحان ورکړ او اعلی او امتیازي پوزیشن مې واخیست لیکن هلته مې چې سبقونه واوریدل انتهائي کمزوري وو، صوبه سرحد ته راستون او دار العلوم حقانیه ته راغلم چې سه ماهی امتحان ته څو ورځې پاتې وې، مولناسمیع الحق صاحب داخله نه راکوله چې دا وخت د داخلې نه دی ماسره چې کوم ملګري تللي وو هغه حضرت مولناشفیع الله صاحب ناظم اعلی دار العلوم باړه ګیټ وو، هغه ورته وویل چې دی په وفاق امتحان کې اعلی مقام او پوزیشن اخلي اوپه پاکستان کې اول نمبر راغلی دي هغه ریکاډ وکتو او فورأئې داخله هم راکړه اود ډوډی اود اوسیدو کمره ئې راته حواله کړه، بیا څو ورځې بعد سه ماهي امتحان وشو الحمدلله چې په امتحان کې په ممتاز پوزیشن سره د کافي اندازې انعاماتو مستحق وګرځیدم چې ددې ټولو احساناتو او انعاماتو الهیو شکر زه نه شم ادا کولای البته دومره وئیلی شم کما قال سیدنامحمد صلی الله علیه وسلم و آله ازواجه واهل بیته واصحابه وسلم ( لااحصی ثناءً علیک انت کما اثنیت علی نفسک) دحقانیه دامتحان او دغه ټوله صحنه کې څمونږ محترم ملګري علماء کرام چې من جمله دهغې نه محترم المقام مولنا عبدالکبیر ، محترم المقام مولنا عبدالسمیع غزنوي، محتر م المقام مولنا محمدخان ځدراڼ، محترم المقام مولنا زین العابدین او نور په ګڼ شمیر کې ملګري مې په خپلو ستر ګو لیدلي وه .

دلوی الله رب العلمین د بې شمیره انعاماتو سره باید واضح کړم چې د وفاق المدارس ټول امتحانونه مې چې ورکړیدی په ممتاز پوزیشن او هم مرتبة الشرف درجه کې یعنی په ټول پاکستان کې اول نمبر راغلی یم ، الحمدلله حمدا کثیراً ونشکره شکراً جزیلاً .

یاده د وی چې دهجرت په دوران کې په کمپونو کې بعضې علمي دیني فتني رامنځ ته شوي چې دهغې د سدباب لپاره د افغانستان دهر ولایت مستقلې جمعیت طلبه اهل السنة والجماعة جوړې شوي او دهر ولایت مستقل تشکیل دصدر څخه تر ادنی عهدي مسؤلین معلوم وو ددې فتنو زیات اغیز دکنړ ولایت کې وو نو دکنړ ولایت جمعت طلبه اهل السنة والجماعة په ( ۱۳۶۸ )ه ش دجدی میاشت کې جوړ شو او زه عبدضعیف دولایت عمومی صدر د انتخاباتو په ذریعه سره منتخب شوم بیا د ټولو جمعیت طلبو مسؤلینو بار بار اجلاسونه او شوری ګانې کولې چې مونږ باید یو اتفاقی صدر ولرو تر څو په اتفاق سره دفتنو او فسادونو مخه ونیسو هغه وه لله الحمد په ۲۱ / جدی / ۱۳۶۸ کال چې دمیلادی کال ۱۱ / جنوری / ۱۹۹۰ سره سمون درلود یو عمومي اجلاس وشو او په ازاده شفافه فضاکې ټاکنې وشوې نو دافغانستان دغې علمي او قیمتي سرمائی ملګرو په ماعبدضعیف باندې اعتماد وکړو، اونه یې دټول افغانستان دتنظیم طلبه صدر وټاکلم زه د الله رب العلمین جل جلاله په حضور کې اقرار کوم چې ماته دخپل ځان په هکله هیڅ داسې رجحان او

امتیاز نه ؤو معلوم ځکه چې د ټولو ملګرو ولایتي صدرانو دعمر په لحاظ زه کشر وم صرف دومره به ووایم چې دا دافغانستان دعلما کرامو او طلبه جان نثارو یواعتماد وؤ فقط ( الحمدالله حمداکثیر أطیباً مبار کاً چې دغه اعتماد مې د لوی الله رب العلمین په معاونت او احسان سره وساتلو او یوه منظمه واحده اداره او یو مسلسل منسجم مستقل پروګرامونه روان وؤ په مینځ څه وړه وړه تحولات منځ ته راغله خو بیا هم محبت دملګرو او عامو طلبه کرامو پر قرآن وؤ آن تر دې چې تحریک طالبان افغانستان په نوم یو حر کت دقندهار څخه شروع شو مونږ یې پر ته دچون وچرانه دهغوی حمایت وکړو او اول قدم کې بعضې اکابر ملګری چې اوس داسلامي امارت په لویو عهدو باندې کار کوي ماقندهار ته لیږلي دي چې خطونه یې راسره موجود دی او بیا مو د کاروان په شکل یوه لویه قافله ولیږله چې مشر ئې مولوي عبدالغنی جوزجانی کوله چې د جوزجان ولایت دجمعیت طلبه اهل السنة و صدر وؤ او په اتحادی عالی شوری کې عضوه وه چې هغه بیا د زابل والی مقرر شو .

د هر اړخیزی همکاری نه بعد بیا زه سره د یو لوی کاروان ملګرو قندهار ته لاړم چې هغه ملګري د اهل السنة والجماعة عالی شوری ریس مولنا محمدعزت الله عارف شهید ،مولنا محمدرستم شهید او بعضی هغه چې اوس دامارت په لویو عهد وسمبال دی لکه مولوی عبدالقدیر مولنا نجیب الله او مولنا عصمت الله عاصم او نور ګڼ شمیر کې ملګری راسره وؤ .

او دهغې ورځې آن تر نن پورې ددې صف اومسلک مضبوط ، مخلص اووفادار خادم یم ،

لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم
که خزان راباندی راشی که بهار

د پوښتنې بل جز چې د طالبی موده څومره وه ، د مستقلې طالبی دوره تقریباً ۷ کاله وه چې پدې موده کې اصول صغری کبری او فلسفه صغری کبری یعنی تر شرح اشارات پوری عقائد صغری کبری یعنی المقاصد پوری او هم علم عروض ، بلکې الحمدالله د ټولو علومو معروفه او غیر معروفه متداوله سابقه څخه په همدی موده کې فارغ شوی یم ، ولله الحمد والمنة

۳ - پوښتنه : جناب شیخ صاحب ، دخپلو هغواستادانوپه اړه که معلومات راکړی چې زیات علمي فیض موترې اخستی اوپه زړه کې مونقش لري مهرباني به موي ؟

دریمې پښتنې جواب : ګران او محترم استاذان هریو په خپل شان سره روحانی پلار وي لکه څرنګه چې مشهور شاعر اسلام عبدالرحمن بابا رحمه الله فرمائی :

زه رحمان حلقه بګوش دهر عالم یم
که ادنی وی که اوسط وی که اعلی

خو بیا هم زه به ووایم چې بعضی علماء څه بیلابیل خصایص شمائیل وفضائیل لري او همدارنګه د اساتذؤ هم په حقیقت کې څه امتیازی وجوهات دبعض اساتذه کرامو لرم په دې وجه چې د نورو اساتذه کرامو کسر شان رانشی صرف دومره به ووایم چې د ټولو اساتذوو ممنون اومشکور یم او د ټولو لپاره د لوی رب العلمین جل جلاله څخه د عالی درجاتو او مقاماتو غوښتونکی یم : فقط

۴ - پوښتنه : قدرمن برهاني صاحب ، ستاسو له نظره هغه کوم اهم نکات دي چې ددیني علومویوطالب یې باید دخپل علمي سفر په دوران کې په پام کې ولري ترڅوالله تعالی ترې یوزبده عالم اودټولنې دیني لارښودجوړکړي ؟

دڅلورم پښتنې جواب : قدرمنو پوښتنه مو ډیره قیمتی ده غواړم چې څه قدری تفصیل پکی ولیکم:

هغه نکات او وجوهات چې د یو طالب العلم نه عمده زبده او د اسلامی جامعی ښه لارښود جوړ کړي په لاندې ډول دي .

۱ - د ټولو نه اساسي نکته اواول لازم ، اخلاص نیت دی یعنی لازم ده چې دعلم د حصول په وخت کې فاسد نیت او دنیوی اغراض نه وي لکه څرنګه معلم انسانیت سیدالاولین والاخرین صلی الله علیه واله وازواجه واهل بیته وسلم فرمائی : انما الاعمال بالنیات وانما لکل امرئٍ مانوی (الحدیث).

قال الامام سفیان ثوری رحمه الله : که چیری دیو طالب العلم نیت صفاوی رضائی الهی مقصود وي نو دده څخه په دنیا کې بل هیڅوک بهتر نشته دی، د نیت اخلاص ځکه لازم او ضروري دی چې داعمالو په تغیر او تبدیل کې مهم رول لوبوی وجه ئې دا ده ډیر داسې اعمال چې په شکل او صورت کې دنیاوی امورو سره مشابهه وی لیکن دحسن نیت په وجه سره دغه اعمال داخرت شکل او صورت اختیار وی کما جاء فی البخاری چې حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائی : چې ماته حضرت نبی کریم علیه السلام وفرمائیل : انک لن تنفق نفقةً تبتغی بها وجه الله الاأجرت علیها حتی ما تجعل فی فم امرأتک ص ۱۳ (جلد ۱) کربنه ۲۴ یعنې دخپلې منکوحې په خوله کې مړی کیخودل یو دنیوی مسئله ده که چیرې نیت پکې شهوت وي او که حسن نیت پکی وشي یعنی رضا درب العلمین نو بیا موجب د ثواب اوامر اخرت وګرځیدو او ډیر داسې اعمال دی چې په شکل او صورت کې دامورو د اخرت څخه وی لیکن دنیت د خرابۍ په وجه یې دنیوی خسیس شکل اختیار کړی .

کماجاء فی جمع الفوائد عن عبدالله بن عمر رضی الله عنه هغه معروف روایت دی چې علم اصلاً د الله رب العلمین لپاره پکار دی که چیرې څوک علم د الله رب العلمین څخه بغیر دبل مقصد لپاره حاصل کړی نو په جهنم کې دې دځان لپاره استوګن ځای برابروی ( اعاذنا الله )

او همدارنګه په یو بل حدیث مبارک دحضرت ابن عباس رضی الله عنه روایت دی، که چیرې اهل علمو دخپل علم عزت کولای او خپل عمل دهغې موافق جوړ کړې نو الله رب العلمین اودهغه جل جلاله ملائیکې او هم عباد الصالحین به ورسره محبت کولای او په ټول مخلوق باندې به ددوی رعب وائی لیکن چې علم یې د دنیا دحصول لپاره ذریعه جوړه کړه نو الله رب العلمین ترینه ناراض شی او په مخلوق کی بې اعتباره شي .

مونږ یو اهم تغیر ته باید متوجه شو چې ځمونږ سلف صالحینو او اکابرینو دعلم دحصول لپاره مال خرچ کولو او ځمونږ په عصر کې د مال د حصول لپاره علم خرچ کوي او ځمونږ اسلافو به دومره انهماک او مطالعه کوله چې د خوراک دمصرف نه به دهغوی دلاتین او ډیوی د تیلو خرچ او مصرف زیات وو او اوس مسئله بالعکس ده ځمونږ سلف صالحینو به الله طلبی پسې ګرځیدل او ځمونږ عصر کې د الله طلبی په ځای دنیا طلبی شروع ده چې دا ټوله ثمره او نتیجه دفساد نیت ده .

دصحیح نیت د نتیجې په هکله زه باید یو عملی مثال ذکر کړم چې هغه یوه معروفه واقعه ده که څه هم اوږده ده لیکن په څو جملو کې رامختصروم ،نظام الملک چې کله مدرسه نظامیه جوړه کړه په کثیر تعداد طالبانو داخلې واخستې لیکن څه زمانه بعد ورته خلکو شکایت وکړو چې ستا په مدرسه باندې چې کومه خرچې او مصرف کیږی ددینه هیڅ نتیجه نه برامد کیږی ، نظام الملک دصورت معلومولو لپاره یو ورځ دماخستن نه بعد مدرسې ته ورغی طلبه کرام په مطالعه مصروف وو پوښتنې یې ترینه شروع کړه چې ته د څه لپاره علم کوی چا ویل چې زه مفتی جوړ شم بل ویل چې زه غټ خطیب جوړ شم ، بل ویل چې زه د پلار میراث راټینګوم حاصل دا چې په لوی مقدار کې طلبو مختلفې ایرادې او نیتونه ذکر کړو نظام الملک ډیر ستومانه او خفه شو وی ویل چې دا ټول طلبه دنیوی دی ځما ددې مصرف هیڅ فائده نشته دی دا باید بنده شی چې اخر کې راو تو نووې کتل یو طالب العلم ځانته چراغ لګولی دی او مطالعه کوي نظام الملک یې خواته ورغی سلام یې وکړو هغه ورته هیڅ توجه نه کوله بادشاه ورته وائی چې ته خو هډو ځما طرف ته ګوری نه او نه توجه کوي ، نو طالب العلم ورته فی الحال جواب ورکړو چې زه دلته د بې فائدې خبرو لپاره نه یم راغلی نو نظام الملک ورته وویل چې ته د څه لپاره دلته راغلی یې نو هغه ورته وویل چې زه د خپل الله رب العلمین راضی کولو لپاره راغلی یم نو بادشاه خپله ایراده بدل کړه چې دا یو طالب هم کافي دی مدرسه مه بندوی او مصرف دمعمول موافق کوی .

دا هغه طالب وو دحسن نیت دوجی نه ترینه امام غزالی رحمه الله جوړ شو چې ټول امت ئې اقوالو ته محتاج دی او دهغه د کتابونو څخه لوی لوی محققین استفادې کوي .

دویمه اهمه نکته : طالب العلم لپاره لازم او ضروری دی چې خپل نفس دناکاره صفاتو او ناپسندیده عاداتو څخه پاک کړي د سلف صالحینو نه منقول دی چې هر شخص د طالبی په زمانه کې د ګناهونونه احتیاط ونکړی ، په دری افتونو کې به په یو خامخا ضرور مبتلا کیږی .

۱ - یا به په عین جوانی کې مړ کیږی ، ۲ - یا به دعمل فضل او کمال سره سره په داسی ځایونو کی بنکاریږی چې هلته دعلم ضیاع تباهی بربادي او عدم اشاعت دعلم وي . ۳ - یا به د کوم فاسق فاجر بادشاه تالې څټی او ذلت برداشت کونکی جوړیږی .

خرنگه چې ډيوه او لاټين يا
شمعه دځان دسيزلو نه بغير چاته
روشنائی نه ور کوي او نه فائده ور کوي
دارنگه علم هم بې دعمل نه چاته هيڅ
فائده نه ور کوي .

امام غزالی رحمه الله په احيا
العلوم کې وائي چې لمونځ د ظاهری
اعضاؤ عبادت دی بغير د باطنی
طهارت نه صحيح اودرست نه دی .

حضرت شقيق بلخی رحمه
الله چې د لويو عارفينو او اولياؤ څخه
دی فرمائيل به ئې چې طالب العلم په
دری کارونو باندې له عمل کولو پر ته
هيڅ فائده نه شی حاصلولای اگر که
صندوقونه صندوقونه کتابونه ووائی .

۱ – دنيا سره به محبت نه ساتی ځکه دا
د مسلمان رفيق نه دی .

۲ – شيطان سره به دوستی نه کوی
ځکه چې دا د مسلمان رفيق نه دی .

۳ – هيچاته به تکليف نه رسوی ځکه
چې دا د مسلمان پيشه او خاصه نه ده .

حضرت امام عبدالرحمن بن
قاسم رحمه الله وائی چې ما د امام
مالک رحمه الله په خدمت کې ۲۰ کاله
تير کړو ۱۸ کاله مې صرف دهغه نه
ادب او اخلاقو په يادولو کې مصرف
کړو او ۲ کاله مې دعلم په تحصيل کې
مصرف کړل يو شاعر وائی :

علم چنان که بيشتر خوانی
چون عمل در تو نيست نادانی

نه محقق بود نه دانش مسند
چارپائی برای کتابی چند

حضرت امام شعبی رحمه الله د ډيرو لويو محدثينو استاذ دی هغه به هميشه شاگردانو ته وئيل چې دعلم حصول سره الله جل جلاله ته ډير ژاړی ځکه چې تاسې يوائې علم نه حاصلوی بلکې دادالله رب العلمين له طرفه په تاسې باندې يو حجت هم قائميږی .

دحضرت مولنا مظفر حسين کاندهلوی رحمه الله په مناقبو او حالاتو کې ليکل شوي دي چې د طالب علمی په زمانه کې به ئې صرف د بازار څخه وچه ډوډی رااخسته او سالن او تر کاری يا په اصطلاح شوروا به يې دهوټل څخه نه اخسته وجه ئې دا وه چې په سالن کې دهغی وخت خلکو امچوره اچوله او امچوره جوړيږی دام ميوی څخه او دامونو باغونه به خلکو په غير شرعی بيع سره اخستل چې هغه ته فقها کرام بيع فاسده وائی يعنی ميوه په ونه کې مخکې د کامل ظهور نه خرڅول کما رواه الائمة الخمسة الا البخاری رحمهم الله

نهی رسول الله صلی الله عليه وسلم عن بيع النخل حتی يزهی وعن بيع السنبل حتی يبيض ويامن العاهة : هداية ص ۳۳ ج : ۳

دريمه اهمه نکته

همدارنگه ډير لازم دی چې دخوراک په اشياوو کې ډير احتياط وکړي ځکه چې الله رب العلمين خپلو رسولانو ته داسې ارشاد فرمائی :

يايهاالرسل کلوامن الطيبات واعملوا صالحا : المومن پ ۱۸ آيت ۵۱

چې دې ايت کريم کې يوه باريکی ده ځکه د اعمالو صالحو نه ئې اکل طيب مقدم کړو مفسرين کرام نکته بيانوی چې خوراک طيب ئې ځکه مقدم کړو چې په اعمالو صالحو کې د خوراک طيب لوی دخل او تاثير وی : يعنی چې خوراک طيب وی نو د انسان نه ښه او بهترين اعمال صادريږی .

او همدارنگه امام الانبياء علی نبينا وعليهم السلام فرمائی : اللهم انی اسالک رزقاً طيباً وعلمانا فعاً وعملاً متقبلا .

معلومه شوه چې دا کل حلال نه بغير د نافع علم او دعمل صالح حصول ممکن نه دی ځمونږ په عصر او زمانه کې بعضې طلبه کرام دنور و ملگرو اشياء بغير د اجازت نه استعمالوي اومال غنيمت ئې گڼي او د مدرسی څيزونه خپل شخصی ميراث بولي نو څرنگه به ترينه د اسلامی جامعی لپاره ښه رهبر او عمده او زبده عالم جوړ شی .

خو که چيری د تقوی زندگی اختيار کړی نو ټول دنياوی نعمتونه به دده قدمونو ته پخپله راشی و ماذالک علی الله بعزيز .

ددی مقصد د اثبات لپاره مناسب ده چې زه هغه تاريخی واقعه ذکر کړم کوم چې صاحب دخطبات الفقير په خپل کتاب کی ذکر کړيده .

دهندوستان دهلی مرکزی مدرسي کې يو طالب العلم وه چې په يو مسجد کې به ئې گذاره کوله يوه ورځ په محله کې څه جگړه ونښته يوه نوجوانه نجلی دخپلوانو کره تلله چې دجنگ د ويری نه د جمات کوټې ته ننوته هلته گوری چې يو طالب العلم کتاب گوری ، طالب ور ته ووېل چې

زه وزه که خلک خبر شي نو ځما لپاره لويه بدنامي ده او ځما د علم د نقصان لوی سبب دی هغې ور ته عذر وکړو چې شپه ده او بهر لويه هنګامه ده مشکل ده چې دخپلو اقرباو ته په عافيت سره ورسيږم او مسجد د الله رب العلمين کور دی دلته مې چې امن رانه شی نو چر ته به لاړه شمه طالب العلم لاجواب شو جينۍ ته ئې وئيل چې غرفه هم وړه ده په هغه ګوټ کې به کينم خپله مطالعه به کوم ټول شپه به طالب لاس په ډيوی باندی يوځه وخت کيخودو بيابه ئې لري کړو ترسباپورې طالب همداسې وکړل ، کله چې سهار شو طالب جينۍ ته وويل چې اوس سبا دی لاره کې مشکل ختم شويدی ته لاړه شه جينۍ ور ته وويل تر هغې به د مسجد څخه ونه وځم چې ماته داراز ونه وائی چې تا ټوله شپه ولې لاس په ډيوه کيخودو.. طالب العلم ور ته وويل چې ماته به ابليس خطرناکې وسوسی په زړه کې اچولې چې تاريخی حسن واله جينۍ در سره شپه ده د ګناه او زنا ترغيب به ئې راکوو چې کله به د نفس د خواهش او ابليس وسوسې نه تنګ شوم نو لاس مې په چراغ ځکه کيخودو چې نفس ته مې وئيل چې زه معلومات کوم ځما بدن د دنيا داور برداشت کولای شي او که نه نو ما محسوس کړه چې ځما بدن د دې دنيا اور نه شي برداشت کولای نو دجهنم اور به څرنګه برداشت کړم...

دراز معلوم و لو نه بعد جينۍ خپل کرو ته لاړه د هندوستان يو مالدار او زميندار سړي لور وه او د جينۍ حسن هم مايه ناز تاريخی وه لويو سرمايه دارو به د نکاح مطالبی لپاره راتلل ليکن جينۍ پلار ته وويل چې ځما نکاح به د فلانی طالب العلم سره وکړی چې زه دهغه خدمت دخپل ځان لپاره سعادت ګڼم هغه وو چې ددې جينۍ نکاح د يو فقير طالب العلم سره وشوه نو ثابته شوه چې څوک د حرامو څخه ځان وساتی الله تعالی رب العلمين هغه نعمت ور ته په حلاله طريقه عطا کوی ولله الحمد والمنه .

څلورم اهمه نکته : طالب العلم ته په کار دی چې دخپلو شيوخو او اساتذو ادب او احترام په خپل ځان باندې واجب او لازم وګڼي .

دحضرت سيدالاولين والاخرين صلی الله عليه وسلم په ارشاداتو کې راغلی دی چې د بوډا مسلمان ، عالم دين ، حافظ قران ، عادل بادشاه او دخپل استاذ احترام او تعظيم دا بعينه د الله تعالی جل جلاله په تعظيم کې داخل دی .

امام بن وهب رحمه الله به فرمائيل ماته چې الله تعالی جل جلاله څه راکړيدی دا صرف د امام مالک رحمه الله دادب په وجه سره راکړی شويدی .

امام احمد بن حنبل رحمه الله چې لوړ مقام لري په ده باندې ادب دومره غالب وو چې دخپل استاذ نوم به ئې نه اخسته بلکې هغه به ئې په کينايي سره ذکر کاوو .

امام ربيع رحمه الله وائی چې ما دخپل استاذ امام شافعی رحمه الله په مخ کې داوبو څکلو جرات نه دی کړی .

امام شافعی رحمه الله فرمائی چې ما به د زيات ادب دوجی نه د استاذ په مخ کې د کتاب پاڼه په ډير اهسته طريقی سره اړوله چې استاذ ئې وانه وري .

دشيخ او استاذ يو حق دا هم دی چې د فراغت نه بعد به دهغه دملاقات لپاره حاضريږی ولي خدای مه کړه شاګرد به دلوی خير څخه محروم شی ځکه چې په شرحه طريقه المحمديه کې ذکر دی چې دفقهي لوی امام حلوانی رحمه الله چې بخارا کې اوسيدو يو بل ځای ته تشريف يو وړ اکثراً تمام شاګردان دهغه د ملاقات لپاره حاضر شو صرف يو شاګرد امام زرنوجی رحمه الله حاضر نه شو څه وخت بعد د امام حلوانی سره ملاقات وشو نو هغه دخپل غير حاضری عذر پيش کړو چې زه دخپلی والدي دخدمت په وجه نه شوم راتلای نو استاذ امام حلوانی رحمه الله ور ته ووئيل چې عمر به دې اوږدوی ليکن درس به ور ته نصيب نه وی د استاذ دا ګفت همغسی تطبيق شو چې ټول عمر د تدريس څخه محروم وو.

د تصرف او سلوک يو لوی امام ميرزاجان مظفر جانان صاحب د علم حديث سند دشيخ حاجی محمدافضل صاحب څخه حاصل کړی وو هغه فرمائی چې دفراغت نه بعد ماته موقع ميسره شوه چې دحاجی صاحب نه په ادب مطالبه وکړم ترڅو خپله ټوپی ماته لږ راکړی هغه راته راکړه چې ډيره زمانه خير نه وه ما هغه د شپې وميندځله او هغه خيرنې اوبه ما او څکلی دهغو اوبو په وجه او برکته سره ځما زړه داسې روښانه شو چې ما ته په کتاب کې هيڅ مشکل نه راتلو ، الله اکبر اللهم انا نسالک مثل هذه البرکات بحرمة النبی البحر والبر صلی الله عليه واله وسلم .

محترمو وروښو حقائق او واقعات ډیر زیات دی لیکن زه د کامل اختصار څخه کار اخلم یو شاعر عربی داستاذ دحقوقو په هکله قیمتی شعر لیکلی دی .

رایت احق الحق حق المعلم
واوجبه حفظا علی کل مسلم
لقد حق ان یهدی الیه کرامۃً
لتعلیم حرف واحدٍ الف درهمٍ

پنځمه نکته : هر هغه شخص چې غواړی یو عمده زبده مقبول عالم جوړ شی نو دخپل شیخ مرشد او استاذ خدمت به دځان لپاره ذریعه د نجاح او فلاح دارینو سبب او ذریعه ګڼي ، ددې نکتی بهترین مصداقات دی چند مختصر عملی نمونې ستاسې په وړاندې ذکر کوم .

اول : امام اعظم فقیهم اقوم مجتهد مقدم ابوحنیفة نعمان علیه سحائب الرحمة والرضوان دخپل استاذ خدمت دخپل ځان لپاره سبب د فلاح دارینو ګڼو بیان ئی دادی چې دده محترم شیخ چې حماد بن سلمه رحمه الله عنه دهغه خورمبارکه عاتکه حیهاالله فرمائی : چې حضرت امام عظم رحمه الله به ځمونږ د کور ټول خدمت کولو بازار ته تلل سبزی یا ترکاری اخستل دابه دده مبارک روزمره او همیشه وظیفه وه اوس دمشرق او مغرب بنی نوعه انسان پوهیږی چې دده مبارک څخه بعد داسې شخصیت دنیا ته ندی راغلی او داعالمی مقبولیت او رسوخیت او محیر العقول ذکاوت ذهانت فطانت او معرفت چې ورته لوی رب العلمین ور کړیدی څه وجه نه غواړی ؟هرومرور ... الخ

دویم دخلیفه هارون الرشید په عصر کې دنحو لوی امام حضرت اصمعی رحمه الله وو خپل ځوی شهزاده ئی هغه ته د تربیت لپاره ولیږو چې دابه ستاشاګرد وی چې ښه تربیت یې وشي یوه ورځ امیر المومنین هارون الرشید (رح) د ملاقات لپاره تشریف ور وړ وې کتل چې ځوی یې لګیا دي امام اصمعی ته اوبه اچوی او هغه مبارک اودس کوی هارون رشید ورته وویل چې حضرت ما خپل ځوی تاسې ته رالیږلی دی چې ادب او تربیت یاد کړی که چیري تاسو نه ئی ادب یاد کړی وائی ځومره به ښه وای امام اصمعی رحمه الله ورته وویل چې ادب ئی یاد دی داعاجز لګیا دی اوبه راته اچوی هارون رشید رحمه الله ورته وویل چې ادب به داوی چې ته ورته ووائی چې په یو لاس ماته اوبه اچوه او په بل لاس ځما اندامونه وینځه – سبحان الله .

دریمه : دحضرت شیخ الهند محمود الحسن دیوبندی او دهغه دشاګرد حسین احمد مدنی رحمهماالله واقعه معروفه او مشهوره ده تقریبا د اهل علومو څخه مخفی نه ده چې حسین احمد مدنی (رح) به دخپل شیخ لپاره په زندان (جیل) کې په کوزه باندی د سجدی په حالات پروت ؤو چې سخته سردی وه د تهجدو وخت پوری ترڅواوبه ګرمي شي او شیخ ته دیخو اوبو په وجه کوم تکیلف ونه رسیږی او تهجد تری پاتی نه شی .

ادبوالنفس ایها الاصحاب = فان طرق العشق کلها اداب

شپږمه نکته : که کوم طالب العلم غواړی چې محبوب مقبول او عمده زبده شخصیت ترینه جوړ شی نو ددین او شریعت د کتابونو انتهائی ادب او احترام دې لازم او ضروری وبولي.

امام شمس الائمه حلوانی رحمه الله به فرمائیل چې مونږ ته کوم علم راکړی شویدی په دې کې زیات د ادب او احترام دخله ده هیڅ کتاب به ئی بغیر د اودس څخه نه رااخسته .

امام سرخسی رح چې لوی مجتهد دی د مطالعی په وخت کې ورته څه بیماری د ګیډی لاحق شوه یو ورځ یې ۱۷ کرته اودس وکړو د شدید ضرورت سره ئی بی داودس نه کتاب مسح نه کړو .

حضرت مفتی کفایت الله رحمه الله یو ورځ د درس په دروان کې طلبه کرامو ته وئیلی وو چې تاسې نه زه پوښتنه کوم چې حضرت مولنا محمد انور شاه کشمیری رحمه الله دومره بلند پایه او مایه ناز محدث ولی جوړ شو ؟

هرشاګرد خپله رائی پیش کړه مفتی صاحب خاموش وویوه رایه هم ورته قابل قبلول نه وه شاګردانو ورته وویل چې حضرت تاسي وفرمائي چې څه وجه ده، هغه ورته ووئیل چې یوه ورځ دحضرت کشمیری رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې ته دی مقام ته څرنګه ورسیدی هغه ورته وویل د کتابونو د ادب دوجهی نه طالبانو ووئیل حضرت د کتابونو ادب خو هر څوک کوی کشمیری صاحب ورته وویل چې ځومره ادب ماکړیدی دبل چانه ئی تصور نه شم کولای .

اول داچې ما هیڅ کتاب بغیر د اودسه مطالعه کړی نه دی ، دویم داچې ما ځان تابع ګرځولی او کتاب متبوع ، مثلاً چې زه بخاری شریف مطالعه کوم که چیرې نکته یاحاشیه کړه وي نو کتاب په خپل ځای وي اوزه د کتاب څخه تاوېږم

عالم هر څومره کمزوری شي لیکن د بغدادی قاعدی څخه نیولی تر بخاری شریف پوری مختلف درجات او مراتب دی په یوی مرتبی اودرجی به ضرور باالضرور قادر وي.

لیکن د تجربی او تجزیی له مخې چند وجوهات دی چې زه به ئی داختصار سره په څو مادو کې ولیکم:

۱ - للهیت او اخلاص او که د نیت خالص کمزوری وی یعنی قابلیت وي لیکن مقبولیت چې تدریس او خدمت ددین متین دی هغه به ور ته نصیب نه شی.

۲ - د اخرت او ابدی خایسته زندګی شاته غورځول اوهغی طرف ته قلت رجحان.

۳ - پست همتی او کم همتی په انسان غالبه شی ځکه چې تدریس یو عالمی همت ته ضرورت لري په اکثرو ملګرو کې دا همت کمزوری وي غواړي چې په اسانه طریقی سره زندګی سر ته ورسوي لکه تجارت یا مکتب کې معلم جوړیدل، په وصایاوو دامام اعظم رح کی ۸۲ وصیت دادی (وکن ذاهمة فان من ضعفت همته ضعفت منزلته.

۴ - دسلفو صالحینو دژوند او د اسلام دخدمت په وخت کې د ستونزو نه بې خبری ده که چیری دخپلو فقهاؤ محدثینو او مفسرینو حالات دمطالعې لاندې ونیول شي چې هغوی مبار کو هستیو په څومره مشکلاتو کې د اسلام خدمت او اشاعت دین او مونږ ته ابلاغ سنت نبوی کړیدی نو دمعمولي استعدا دطالب العلم بعد الفراغت به بې د تدریس نه بل هیڅ ځیز ته زړه ښه نه کړی.

۵ - د مادیاتو طرف ته رقابتونه دي هر سړی غواړي چې په مادی دنیا کې زه دخپلو اقاربو څخه مخکې شم چې دا یوه ابلیسی حربه ده.

۶ - دعصری حکومتونو انتهائی ظالمانه کردار دی چې دینی مدارسو سره کیږی چې د انتهائی بلند پایه مدرس څه قدری ګذاره سر ته رسیږی لیکن عام مدرسین د ګوناګون ستونزو سره لاس او ګریوان دی نو مجبوره وی چې د ژوند د تیرولو نورو اړخونو ته لاس واچوی.

۷ - په پاکستان کې د افغانی علماؤ سره غیر انسانی سلوک هم ددی باعث شویدی چې تدریسی رجحانات دیو فارغ التحصیل کم کړی.

۸ - دمهتمم یا د مدرسی قیم یعنی مدیر بعضی اخلاقی کمزوریانی دی چې دعلماؤ مدرسینو سره ئی کوی نو چې شاګرد دخپل استاذ او مهتمم حال ته ګوری د فراغت نه بعد ئی تدریسی رجحانات کم وی ځکه هر سړی دا اقتصادی قوت نه لری چې خپله مدرسه ولري او د مدرسی د مهتمم د کردار نه مخکې ډار شوی وی خو د بخودمفضولو کارونو کې ځان راګیر کړی.

۹ - مشاغل کثیره او روابط غیر مفیده دی دخلکو سره ځکه چې کثرت روابط دعوامو سره دا یو انسان مختلفو طرفو ته متوجه کوي بیا خصوصاً دنیا طرف ته او دهغی دحصول لپاره اسبابو ته.

۱۰ - قبل تحصیل العلم بې وخته یو طالب العلم په ازدواجی مشکلاتو کې راګیرول ځکه د اولادونو دوجهی نه مختلفو دنیاوی معاملاتو ته رجوع کوی، د امام اعظم رضی الله عنه په وصایاوو کې چې خپل شاګرد د قاضی ابویوسف رحمه الله ته کړیدی په هغو وصایاؤ کې ۳ وصیت دادی. (وایاک وان تشتغل باالنساء قبل تحصیل العلم فانه یضیع وقتک ویجتمع علیک الولدویکثر عیالک

دریم: داچې ماهمیشه دکتابونومراتب په نظر کې نیولي دي مثلااول به مې تاریخ کتابونه ایښودل، بیامې دفنونو، بیامې دفقهې، بیامې دحدیثومبارکوو کتابونه اودهغې دپاسه به مې تفسیرونه اودهغې دپاسه به مې قرانکریم ایښووده، دغه ادب له ماڅخه کشمیری جوړ کړو، قیاس کن زګلستان من بهارمارا

اوومه نکته: دبهترین مقام دحاصلولولپاره بهترین محنت اوپر استعابه مطالعه ضروري ده، سستي اودوخت ضیاع دانسان مقام ښکته کوي، تیقظ اوښه همت دانسان مقام بلندوي، حضرت علی رضی الله عنه فرمایي: العلم لایعطیک بعضه حتی تعطیه کلک(چې ټول ځان وقف کړي نوبیابه څه لږ حصه علم حاصل کړي.

**۵** - پوښتنه: محترم شیخ صاحب، ماشاالله هرکال په زرګونوتنه علمای کرام دفضیلت اوفراغت پګړی تړي، خوډیرکم اوډګوتوپه شمیر بیادتدریس خواته مخه کوي، ستاسوپه فکرهغوی ته شرایط ندي اماده، علمي قوت اومهارت یې کمزوری وي یابله کومه ستونزه لري په دې برخه کې ستاسوتجربه اوتجزیه څه ده؟

پنځمې پښتنې جواب: دفارغ التحصیل علماؤ ملګرو تدریس طرف ته دعدم رجحان لپاره مختلف وجوهات دی یوائې دعلمي قوت او مهارت کمزوری نه ده، ځکه که یو

فتحتاج الی القیام بحوائجهم ومصالحهم و تبقی عن العلم والمال، ای فتترک العلم) تلک عشرة کاملة تکتفی لمن کانت له قوة عاقلة

۶- پوښتنه : جناب شیخ صاحب ، په افغانستان اوپاکستان کې اوس هم د منطقواوفلسفي يوشمیر کتابونه په مدرسوکې لوستل کيږي او دطالبانو تقریبا څوکاله په هغومصرفيږي ، ځينې علمای کرام په دې باور دي چې په دې برخه کې دي تجدید نظروشي اوصرف يويا دوه دمنطقواوفلسفي کتابونه دې پریښوول شي ، تاسې په دې اړه څه مشورې لرئ؟

دشپږمې پوښتنې جواب :

محترمو ملګرو منطق یو فطری علم دی چې فکر انسانی دخطائی نه بچ کوی یا په بل عبارت چې نظر او فکر د غلطیانوواقع کیدونه بچ کوی ، په یو مقصد باندی دلیل او برهان قائمول ، قیاس جوړول او نتیجه راویستل افکار ذهنیه دخطائی نه پاک ساتل ددی څیزونو نوم منطق دی چې ددی علم اولنی باقاعده او باضابطه اظهارونکی حضرت ادریس علیه اسلام نه شوی وه ، مخالفینو ته مضبوط جوابونه او معاندین عاجز او ساکت کول دمعجزی په طور به هغه مبارک استعمالول بیا یونانیانو داعلم راخپل کړو دیونانیانو رئیس حکم ارسطو چې ۳۸۴ قبل د حضرت عیسی علی نبینا وعلیه السلام نه تیر شویدی حکمت او منطق دواړه مدون کړه چې دیته معلم اول ویلی شی بیا د مامون رشید په دور خلافت کی فلسفه او منطق دیونانی نه عربی ته رانقل کړو ، بیا منصور سامانی ، ابونصر محمد بن محمد بن طوفان فارابی متوفی (۳۹۹) ته دوباره د تدوین حکم وکړو ددی وجهی نه ور ته معلم ثانی ویلی شی چونکه تحریری شکل سره داډیر منتشر وو بیا سلطان مسعود شیخ ابوعلی حسن بن عبدالله المعروف بابن سینا متوفی (۴۸۸) ته دښه منظم او مرتب شکل مدون کولو دریم بار حکم وکړو ددی وجهی نه ور ته معلم ثالث ویلی شی او نن سبا چې کوم منطق مروج دی داد ابوعلی ابن سینامدون منطق دی :

دعلم منطق په هکله د اهل علمو رائې : په دی باب کی ابن قیم او دهغه استاذ ابن تیمیه سخت خلاف دی او بعضی قصیدی یې هم وئیلی دی لکه واعجبا المنطق الیونان کم فیه من کذب ومن بهتان . الخ

او بعضو داسی مقوله هم بیان کړیده، من تمنطق فقد تزندق مګر داټول خیالات او رائی فاسدی دی ، ځکه دعلم منطق ایجاد دنظری او فکری غلیطانو د انسداد لپاره شویدی .

که ددی دقواعدو او ضوابطو رعایت او لحاظ په پابندی سره وساتل شی نو عقل انسانی او رائی انسانی دغلطیانه محفوظ پاتی کیدای شی ، ځکه چې ددی علم مقصد اصلی اصلاح دعقل او تصحیح دفکر ده او ظاهره خبره ده چې دا بهترین مقصود دی .

ځکه چې مخلوقاتو او په عالم موجود باندی د انسان بهترینه بر تری شرافت او برکت دعقل په وجه سره دی او عقل انسانی نهایت عظیم الشان او قیمتی لوی جوهر دی .

چې ددی په برکت سره انسان د ډیرو مشکلاتو نه وتلی شی او کامیابه زندګی ئی جوړیدای شی ،

بعضو شعر او ښی قصیدی هم وئیلی دی .

عاب المنطق قوم لاعقول لهم ولیس له اذاعابوه من ضرر

ماجز شمس الضحی والشمس طالعة - ان لایری ضوٴها من لیس ذابصر

دعلم منطق په هکله دمحقیقنو د رائی کاتب چلپی په کشف الظنون کی ذکر کوی قال الشیخ ابونصر فارابی المنطق رئیس العلوم ځکه چې دصحت او سقم قوت او ضعف په اعتبار سره علم منطق په جمله علومو حاکم دی.

وقال الشیخ ابوعلی ابن سینا المنطق خادم العلوم کلها .

وقال حجة الاسلام الامام غزالی رحمه الله: من لم یعرف المنطق فلا ثقة له فی العلوم اصلا وقال الشیخ ابوعلی ابن سینا مفصلاً، المنطق نعم العون علی ادراک العلوم کلها وقدر فض هذا العلم وجحد منفعته من لم یفهمه .

حضرت قاضی ثناءالله پانی پتی رحمه الله وائی مګر منطق که خادم همه علوم است خواندن آن البته مفید است .

حضرت شاه عبدالعزیز رح چې د بخارا د بادشاه دسوالونو د جوابونو لپاره یوه رساله لیکلی ده د منطق په هکله دسوال په جواب کی لیکلی دی چې منطق حیثیت دآلی دی او آله همیشه لپاره

دذی الالی تابع وی . بیا شاه صاحب زیاتوی چې جهاد عبادت دی او هغه بغیر د اسبابو او آلی نه نه کیږی بلکه توپ و ټوپک په ذریعی سره نو چې جهاد عبادت دی نو دهغی اله ساتل او دهغی حفاظت هم عبادت دی .

بعضی شعر او دعلم منطق دصفت په هکله داسی څر ګندونی کړیدی :

ان دمت ادراک العلوم بسرعة
فعلیک بالنحو القویم ومنطق
هذا میزان العقول مرجح
والنحو اصلاح اللسان بمنطق

او متاخرینو علماوو او مفسرینو کی صاحب دبیان القرآن په خپله رساله النور کی لیکی لکه څرنګه چې مونږ دبخاری شریف مطالعه ثواب ګڼو نو همدارنګه د میر زاهد او امور عامه مطالعه هم موجب او سبب د ثواب ګڼو بشرطیکه چې نیت صحیح او صفا وی ځکه د نیت دښه والی په وجه سره چې بخاری د الله رضا لپاره وایو نو دا کتابونه هم د الله تعالی جل جلاله درضا لپاره شو .

پاتی شو ځما شخصی نظر

او تجربه ، نو زه وایم چې منطق بهترین د استعداد جوړولو علم دی بی دمنطق دمهارت نه په هدایو اود اصول فقه په کتابونو او همدارنګه دقرآن کریم په باریکه مرموزاتو او هم بعضی ګران اومشکل احادیث مبارکه ؤ باندی پوهیدل ګران دی نو کتابونه ئی ټول مفید دی ، او هر چې قدیمه فلسفه ده دا اوس کارامد نه ده وخت پری ضایع کول نه دی پکار بلکه صرف

اصطلاحات او څه خاص قواعد کافی دی ځکه چې مسلم الثبوت تلویح او خیالی کی لازم او ضروری دی .

۷ - پوښتنه : عزتمنده ، دتالیف په برخه کې موخه هڅې کړې اودتالیف اوترجمې کار څومره مهم شمیرې ؟

- د اوومی پوښتنې جواب : قدرمنو وروڼو ، تالیف او تصیف یو اهم ترین ذریعه دحفاظت دین او علم ده چې د عربو معروف مثل سائر دی او مکتوب فی الدفاتر دی العلم صید والکتابة قید:

که په تاریخی اعتبار نظر وکړو همدا تصنیف او تالیف دی چې مونږ ته ئی شریعت محمدی په متصل باوثوقه ذریعه سره رارسولی دی که کتابت او تصنیف نه وی نو مونږ به د ډیرو قیمتی ، او علمی نکاتو او د شریعت دمرموزاتو څخه بی برخه وی .

علم شریعت او دین خو اهم ترین قوانین د انسان او مؤمن دزندګی دی ددی کتابت تدوین او تصنیف خو لازمی او ضروری امر دی .

لیکن معاملات چې ادنی مباحات دی الله تعالی رب العلمین جل جلاله ئی دکتابت حکم کړیدی،لکه چې فرمائی : یایهاالذین امنوا اذا تداینتم بدین الی اجل مسمی فاکتبوه ..الایة - بقره:

او بیا دیته ګورو چې تصنیف او تدوین دمحدثینو په نزد څومره اهم دی .

امام بخاری رحمه الله په خپل جامع کی کتاب العلم کی ۷ باب په داسی عنوان سره قائم کړیدی: باب مایذکر فی المناولة وکتاب اهل العلم باالعلم الی البلدان او بیائی دقرآن کریم کتابت ته اشاره کړیده او غرض ئی دا دی چې مونږ ته قرآن کریم د کتابت او تحریر په شکل رارسیدلی دی لکه چې امام بخاری رحمه الله وائی :

وقال انس نسخ عثمان المصاحب فبعث بها الی الافاق :

ورای عبدالله بن عمر : ویحیی بن سعید، ومالک ذالک جایزاً

واحتجج بعض اهل الحجاز فی المناولة بحدیث النبی صلی الله علیه وسلم حیث کتب الامیر السریة کتاباً وقال لاتقراه حتی تبلغ مکان کذا وکذا فلما بلغ ذالک المکان قراه علی الناس واخبرهم بامر النبی صلی الله علیه وسلم جامع البخاری ج ۱ : ص: ۲۱ سطر .

او بیا امام بخاری رحمه الله وایی به مابعد کی ۳۹ باب داسی قائم کړیدی .

باب کتابة العام ، حدثنا محمد بن سلام قال اخبرنا وکیع عن سفیان عن مطرف عن الشعبی عن ابی حجیفة قال قلت لعلی هل عندکم کتاب؟ قال لا الاکتاب الله او فهم اعطیه رجل مسلم او ما فی هذه الصحیفة قال قلت فما فی هذه الصحیفة ؟ قال العقل وفکاک الاسیر ولا یقتل مسلم بکافر.

دا ټول هغه وجوهات دی چې د تصنیف تدوین او تالیف یو اهم ترین ذریعه دحفاظت ددین اوعلم ده .

پاتې شو د پښتنې دويم جز : چې ځما شخصي تصنيف دي نو الحمدلله حمداً كثيرا ونشكره شكراً جزيلا كبيرا چه الله رب العلمين ماته هم دغه خدمت توفيق راكړيدى ځماد كتابونو اجمالي خلاصه .

١ - سيف الملكوت شرح مسلم الثبوت احتمالي جلدونه ( ٢٠ ) فى الحال تيار ۴ جلده دي

٢ - شرح الوقايه شرحه ابلاغ الغاية شرح مغلقات مافى شرح الوقايه احتمالي جلدونه : ٣٢ فى الحال تيار ۶ جلده .

٣ - برهان الدرايه فى بيان شرح مافى ابواب الهداية .

۴ - الهام البارى فى الجوابات عن الايرادات اللتى على احاديث البخارى چي د بخارى شريف سره يو ځاى په مقدمه كې چاپ ده . البته هغه چاپ دمردان مطبع الرحمن حاجي والا چاپ دى .

۵ - افهام الملت فى بيان جوان الاضحية عن الميت .

۶ - الحقيق المرضى شرح مغلقات القاضي .

٧ - البراهين القاطعة فى بيان مسائل الاختلافيه .

٨ - كتاب الغنيمة و تقسيمها على اصول الشريعة . چې د امارت د نظامي كميسون په خواست سره مې ليكلى دى .

٩ - تنبيه الاذكيا؟ فى بيان حيات الانبياء .

١٠ - انعام المنعم شرح مقدمة المسلم .

١١ - الهام الرحمن اصول تفسير القرآن - وروستى دوه كتابونه زير ايرادة الكتابت دى .

١٢ - مختلف قيمتي تقارير دى تقريبا په هر كتاب .

حمدالله خيالى ، بخارى شريف ، ترمذى شريف ، .... الخ .

٨ - پوښتنه : جناب ، عصري علوم چې له دين سره ټكرونلري زدكړه يې څومره لازمي بولى ، ځكه هغه هم دټولنې اوژونديومهم ضرورت اواړتياداي اوله اغيز اورول څخه يې انكار ناممكن دى ؟

داتمي پوښتنې جواب : په يو حديث مبارك چې اوږ دطويل حديث دى دهغه حديث يو جمله مبارك ده داده العلم سلاحى ، بيا اصولى طريقى سره علم په دوه قسمه دى .

علم الاديان : ٢ - علم الابدان ، بيا د دواړو علومو ځانته جلا جلال فايدى دى ، يعنى انسان نفع اخستو ته ضرورت لرى ، دهوانه نفع اخستل جدا طريقه لرى ، د اوبو څخه فائده اخستل جدا طريقه ده ، د اور څخه نفع اخستل عليحده طريقه ده .

دخپل الله رب العلمين نه فائده اخستل ځانته طريقه ده ، نو علم الاديان غرض او مطلب دخپل خالق او رب څخه فائده اخستل چې لاره او طريقه ئې بعثت د انبياوو دى او نزول د قوانينو الهى دى .

او دعلم الابدان غرض چې هغى ته عصرى علوم وائى هغه د مادى اشياؤ نه فائده اخستل دى په اوسنى عصر كې كفرى دنيا په علم الابدان باندى ډير همت او محنت كوى حتى چې د خلانه په زمكه واړه واړه اشياؤ تصوير را كاړى او باالفرض كه چيرى وغواړى په ميلونو كسانو كې د كوم خاص انسان تصوير اوموقف هم ور ته اسان دى ځكه دانسان په بدن كې ١٧ داسې مواضع دى چې هغه بالكل نه بدليږى . ٨ صرف په مخ او چهره كې دى نو په علم الابدان كې د اسلام دشمنان او كفرى دنيا دومره ترقى كړيده چې مثال ئې په خارج كې داسى دى لكه يو انسان د كراټې ماهر او بل طرف يو وړو كى ماشوم نو مونږ بايد لازم او ضرورى دعصرى علومو څخه هم ځان خبر كړو او اسلامى امت ډير وروسته دى د كفرى دنيا نه ځكه اسلامى ملكونه ۵٨ دى او په دى كې صرف ۴٠٠ سايئنسى پوهنتونونه ( يونورسټى ) دى او كه بل طرف ته وګورو چې صرف په جاپان كې ( ۴٠٠٠ ) زره ساينسى يونورسټى دى نو اوس اندازه بايد ولګول شي چې په نورو كفرى ملكونو كې به څومره مقدار وى او بل د كفارو مادى عصرى علومو سره دومره شوق دى چې دامريكا په يوى يونورسټى كې ٧۵ زره كسان په زده كړه مشغول دي اوبل دې طرفته وګوروچې داسلامى ملكونو پوهنتونونو كې صرف درى ګېنټې درس وي او ٢١ ګهنټې خالي پراته وى او كفار ئې ٢٣ ګهنټې مصروف او استعمالوى .

حاصل داچې اصل علم چې مدارسو كې متد اول دى داعلم الاديان دى چې الله رب العلمين دمعرفت سبب دى او هغه علوم چې په كالجونو ، پوهنتونونو كې متد اول دى هغه علم الابدان علم مادى يا عصرى علوم دى .

اوس نكته مهمه داده كه څوك صرف خپل رب العلمين رضا كول غواړى نودهغه انسان لپاره علم الاديان كافي دى .

او که څوک غواړي چې په ځمکه باندې دخلافت نظام قائم او نافذ کړي نو دهغه لپاره دعلم الادیان ترڅنګ ورته علم الابدان لازم او ضروري دی ولی که داسی نه وی د الله نظام او خلافت په ننی عصر کی بغیر دعلم الابدان نه ممکن نه دی ، یا په بل عبارت که څوک غواړي چې ذاکر شاکر زاهد شاغلی سالک جوړشم او زندګی سرته ورسوم نو دهغه لپاره علم الادیان کافی دی ، او که څوک غواړي چې د الله خلیفه جوړشم او نظام خلافت او عدالت مخلوق ته ور کړم نو علم الابدان لازم او ضروری دی ځکه چې کفری دنیا بغیر ددی علومو نه انسان ته موقع نه ور کوی چې خلافت قائم کړی او اسلامی جنډه بلنده کړی ، که تاسی ته په خیال او فکر کی دا سوال راځی چې دا نکته تاسی د کوم ځای نه مستنبط کوئ نو مونږ وایو چې دا د الله رب العلمین جل جلاله ددی کلام نه " واعدوالهم مااستطعتم من قوة " یعنی چې ستاسی څومره استعداد او استطاعت وی هم په هغه اندازه قوت د ځان لپاره راموجود کړی ، دانسان فکر ته راځی چې د الله کوم قوت مراددی روحانی قوت یا مادی عصری قوت متصل الله رب العلمین وضاحت وکړو من رباط الخیل یعنی مادی عصری قوت ولټوئ ترهبون به عدوالله – یعنی دومره قوت باید تاسی ولری چې دښمن ستاسی طرف ته سترګی هم نه شی اوچتولی ، خلاصه دا چې علم الادیان مقصود دی او اصلی علم دی او علم الابدان وقتی عصری او د ضرورت علم دی چې د شریعت سره ظاهراً تضاد ونه لری زده کول دیومؤمن متدین او دخلافت نافذولو لپاره لازم او ضروری دی .

۹ - پوښتنه : ښاغلی برهاني صاحب ، داچې دامریکایانوپه خاص مصلحت اواشاره په کابل کې دعلماوویونړیوال کنفرانس په نظرکې دی چې دکابل رژیم دمشرپه وینابنایی په دغه کنفرانس کې داسلامي نړی دیني پوهان اومذهبي مشران ګډون کوي اوفدایي بریدونوپه باب دحرمت فتواصادره کړي ، تاسي ددغه کنفرانس دمشروعیت اواهدافو په باب څه دریځ لری اوشرعي موقف لري ؟

– دنهمی پوښتنې جواب : که په حقیقت کی وګورو نو په دی پښتنه کی پخپله جواب موجود دی او هغه داچې کوم کانفرانس چې د اسلام د دښمنانو په مشوره رابلل کیږی نو دهغی د مشروعیت څه وجه نشته ځکه دښمن چیرته د فائدی کار په اهل اسلام باندی پیروز کوی ؟

دی کنفرانس ته که په واقعیت او تاریخي حقیقت سره وګورو نو داصرف د امریکی مات شوي تکبر باندې یو حجاب او پرده اچول دی بیان تفصیلی ئی دادی چې ۷ / اکتوبر / ۲۰۰۱ تاریخ باندی ددی فرعونیانو خنزیر مشر صدر بش یو متکبرانه اعلان وکړو چې اوس به مونږ طالبان د غارونو نه راوباسو او په جالونو او ځنځیرونو کی به ئی راولو لیکن تقدیر الهی څه بل انداز باندی دوی وشرمول ځکه چې په ۲۰۰۹ کال کې یې اعلان وکړو چې داکال زمونږ لپاره سخت نقصانی کال و، بیاچې کله دحنیفي مذهب جانبازانو اودخالدبن ولید بچیانو اودښوی لښکروارثانو په 2009 / ۲۸ / اکتوبر باندی ۳ هلیکوپتری راوغورځولی او پکښی ۱۴ کسان دهغوی په اقرارغټ فرعونی افسران مردار شول نو پینتاګون په ۲۹ تاریخ باندی اعلان وکړو چې د تېرو نه لوی نقصانی کال ځمونږ لپاره ۲۰۰۹ ؤ نو معلومات ورته وشو چې د دوی فرعون چې کوم طاغوتی خوب لیدلی وو دهغه تعبیر غلط ثابت شو او بیا زیاته شرمناکه المیه ددوی لپاره داوه چې ددی فرعونیانو وزیر دفاع رابرټ ګیټس دخپل فرعون بش په اعلان او تکبر باندی یو مضبوط ګذار وکړو او اعلان یی وکړو چې د امریکی قوم نور تنګ شویدی او فوج ئی ستړی شویدی مونږ نور په افغانستان کی د طویل جنګ تحمل نه لرو. الحمدالله حمدا طیبا مبار کا.

چې فرعونی تکبر دخپل وفادار غلام په خوله باندی مات شو .

دادجالی فرعونی لښکر او حکومت په مختلفو حربو استعمالولو سره ځان مقصد ته رسول غواړی تاسی نه ګوری چې ملت کفری ته دجهاد کلمه د ۱۰۰۰ ایټمی بمونو نه زیاته خطرناکه معلومیده نو امت مسلمه ئی په اعتماد کی واخیست او دجهاد کلمه ئی په دهشت ګردی سره بدله کړه اودهر خطیب دانشمند اومفکر مسلم په ذهن کی دجهاد د کلمی په ځای دهشت ګردی واچوله ځکه خطیب داسی نه شی ویلای چې جهاد د بنه کار نه دی ځان ترینه وساتی او دا په اسانه ویلی شی چې دهشت ګردی د اسلام خلاف عمل دی انسانیت خلاف کار دی ځان ترینه وساتی .

نو اوس چې فدایي حملی د دوی د تکبر او فرعونیت ماتونکی موثرې ثابتې شوی غواړی چې د اسلامی امت دعلماؤ مفتیانو فروفیسورانو خطیبانو او سیاسی دانشمندانو په ذریعه دیته دحرمت حکم ور کړی او دسر ښندونکو فدائی ځوانانو حوصله ماته کړی لیکن الله رب العلمین فرمائی وقاتلوهم حتی لاتکون فتنة ویکون الدین کله الله .

وایضا قال تعالی جل جلاله :
ویابی الله الاان یتم نوره ولو کره الکافرون : توبه ایت ۳۲

دا صرف یو مختصر جواب ؤو که چیری تاسی محترم مناسب ګڼی او غواړۍ چې نور دقیق حقائق ستاسی سره شریک کړم او تاسی ئی دچاپ او طباعت په طریقی سره نشر کولای شی نو رابطه راسره دوامداره ولرئ مهربانی به مو وی مننه .

۱۰ - پوښتنه :
دافغانستان داسلامي امارت مجاهدینوته څه پیغام اولاربښووني لری چې خپل اعمال اوکردار څنګه نورهم په شریعت برابر ، له خپل ولس سره څه ډول چلندوکړي اوخپل صفوف ترکومې کچې سوتره اوصفاوساتي ستره لورینه به موي ؟

- لسمه پښتنی جواب : ګرانو وروڼو مجاهدینو تاسی پوهیږی چې ځمونږ مقابله او جهادی معرکه د نړۍ وال فرعون اودجهانی استکباری طاقتونو سره ده په داسی حال کی چې هغوی په پیش رفته اسلحو او ټیکنالوجی باندی سمبال دی او مونږ صرف دلوی لایزال الله جل جلاله په نصرت تکیاهکوو او نړی وال پوهیږی چې دغه پیش رفته ټکنالوجی فرعونیان په هر میدان کی د شکست او ناکامی سره مخامخ دی نو که چیری مونږ زیات احتیاط وکړو او انتهائ تقوی اختیار کړو نو کفری فرعونی طاقتونه یوائې شکست او ناکامی نه بلکه ځمونږ دلاس لاندی غلامان به وګرځی ان شاء الله تعالی .

دتقوی سره څو مواد لازم دی چې مجاهدین ئی باید عملی کړه :

۱ - د هر مشکل دمنځ ته راتلو په وخت کی کامل صبر چې دا مفتاح الفرج دی .

۲ - دغنیمت په اموالو کې انتهای احتیاط چې دخلاف شرع تصرف پکښی ونه شی .

۳ - دبندی افغانانو لاس ته راتلو په صورت کی انتهائی تحقیق په مطلق توهماتو سره د چا په حق کی فیصله ونه شی چې دالله رب العلمین دغضب مستحق ونه ګرځو .

۴ - دظلم نه انتهائی اجتناب ځکه چې حضرت امام الانبیاء صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ بن جبل رضی الله تعالی عنه یمن ته دامیر په حیث لیږلو نو ډیر نصیحتونه یې ورته وکړه چې یو نصحت پکښی دا وو اتق دعوة المظلوم فانه لیس بینه و بین الله حجاب یعنی د مظلوم آه وفریاد خالق رب العلمین براه راست اوری . او الله تعالی په خپل مخلوق ډیر خفه کیږی او دالله جل جلاله خفګان سبب د نزول دعذاب وی .

۵ - دعلماؤ انتهائی احترام کول او دهغوی مشور ته او نصیحتونو ته عملی نمونه ور کول .

۶ - په کومه ساحه او علاقه کی چې تاسی سکونت لری د اوسیدونکو افغانانو سره هر اړخیزی مرسته او همکاری کول چې دا کردار په معاشره کی ښه اثر لری .

۷ - دخپل شرعی امیر چې کله اوامر ئی دشریعت خلاف نه وی اطاعت کول .

۱۱ - پوښتنه : په پای کې دفرهنګي چاروکمیسون اړوند نشراتي برخې ته کومې توصیې لری ترڅوخپلو نیمګړتیاووته متوجه اودپرمختګ نوي مزلونه ووهي ؟

- دیولسمی پوښتنې جواب : ګران قدرمندو وروڼو څرنګه چې ماته ستاسی نشریات په منظم شکل نه دی راغلی ځکه ما سره ددعوت او ارشاد ملګرو کلکه وعده کړی چې هره شمیره به مونږ تاسی ته ضرور رار سوو، خودیوه خبره واضحه اومنل شوې ده اودښمن یې هم مني چې دطالبانو مطبوعاتي اونشراتي هڅې ډیرې ګرندۍ او چلوونکي یې ویښ خلک دي .

زه به داسی ووایم چې په دی سختو شرایطو کی چې تاسی کوم خدمت کوی دادهیچا څخه پټ نه دی الله دې ستاسی خدمتونه او سعی قبولی کړی .

البته ستاسی په حضور کی دا مشوره ده چې زیات زور دیهودی لښکرو به عزائمو واچوی ځمونږ سره رابطه دوامداره ولری ان شاء الله حقایق به در ته لیکم ، دویم اوس یو خطرناک سیلاب د اسلافو دبدنامی لپاره روان دی دهغوی دخدمتونو مضبوط دفاع باید دوامداره نشر شی .

دریم : دائیمه وو مجتهدینو خصوصا د احنافو او امام اعظم رضی الله عنه په خلاف نړی وال مختورن کرغیړن سیاست روان دی چې تاسی دخپل امام اعظم رح حیثیت شان دنیا ته نشر کړی ، ( مرکه کونکي خبیر احمدمجاهد)

# د افغانستان پر غل! امریکا، ایران او شمالي کوریا څه تر لاسه کړل؟

رحیمي........................

د ټپروځه باندې یوولس کلو راهیسې چې امریکایې ښکېلاک پخپل ټول عصري ځواک اود نړۍ د ۴۹ هیوادونو د ګډځواک په ملتیا په یوه ناروا جنګ لګیادی ،هنوز لا خپل مقابل لوري (طالبانو) ته په ماته ور کولو کې پاته دی او اړشوی چې له جنګ ووځي د ۲۰۱۴ ز کال ترپایه له افغانستانه خپل ټول ځواکونه له افغانستان وباسي.

کوم خلک چې دنړیوال سیاست او دهیوادونو ستراتیژ کې موخې پېژني ، هغوئ ته هعلومه ده چې زمونږ په خاوره کې دشوروي اتحاد زور اوبه شوی اوله همدي فرصته امریکا دنړۍ یواځینی ستر ځواک شوه ، ددې په ځای چې امریکا دافغانانو احسان منلی و ، او تري مننه یې کړي وه ، په افغانستان یې دتاریخ تر ټولو رسواه اوظالمانه یرغل راوړ ، دافغانستان سپېڅلې خاوره یې په زور اشغال او ونیوه ،دامریکایانو دظلمونو په وجه لکونه افغانانو دوسپنو نیني وچیچلې.

نړۍ کې ګڼ شمېر کتونکې په دې اند دي چې له امریکا نه لویه سهوه هغه مهال وشوه چې کله یې دویت نام له جنګ اوشکست دځان لپاره کوم پند اوسبق وانخیست ،پکاروه امریکا دویت نام له شکست وروسته خپله جنګې تګلاره تغیر کړي وه ، هغه مهال چې امریکا اوحلیفان یې دویت نام په جنګ کې ښکېل وه ، شوروي اتحاد او چین دواړو د ترقۍ په لور ګړندې ګامونه اخستل ، شوروي دامریکا دهغه مهال غفلت نه په ګټه خپل پر مختګ ته چټک دوام ور کړ ، کله چې امریکا په ویت نام کې ملاماتوونکی اوتریخ شکست وخوړ ،شوروي له هغه داګټه پور ته کړه چې دمځنې ختیځ په ګډون په هند ، چین او افریقا کې یې دامریکا په مقابل کې خپل نفوذ لاپسې پیاوړی اوسیوا کړ ، په هغه زمانه کې بر ژنیف دروسیې ولسمشر و ، شوروي دامریکا اولویدیځ په وړاندې دیو جدي ګواښ بڼه غوره کړي وه .

په ور ته تو ګه چین هم ددغه مهلت په ورځو کې ځان داقتصادي پر مختیا تر بامه ورساو او دنړۍ ستر اقتصادي ځواک شمار شو ، هغه وخت چې شوروي په هندي چین کې دخپل نفوذ زیاتولو هوډ و کړ او په خاصه تو ګه په هغو سیمو کې چېري چې چین اعظمي ګټې درلودي ، هلته یې دخپلوسیاسي رېښو غځول غوښته ، په دې سر ه دچین او شوروي ترمنځ هم اوبه خړې اواړیکې یې ترینګلې شول ، په حیر نوونکې ډول امریکا اوشوروي دواړو دچین

په مقابل کې له هند سره ستراتیژک تړونونه لاسلیک کړل ، اوهندته یې په سیمه کې دچین په مقابل کې زیات رشد او نفوذ ورکړ.

کله چې دشوروي لخوا په افغانستان یرغل وشو او افغانستان ته سرې لښکري راغلي ، نو امریکا اوغرب دشوروي په مقابل کې له افغانانو او مجاهدینو سره ودریدل ، هغه و چې شوروي په افغانستان کې شکست وخوړ اوځواکونه یې له افغانستانه ووتل.

دسیاسي چارو کار پوهانو په وینا: د ۱۹۵۶ زخځه وروسته امریکا خپلو نړیوالو پالیسیو کمزوري کړه ، سره له دې چې ستر ځواک و خوبیا هم دزول او انحطاط په لور روانه وه ، اوپه مقابل کې یې چین اوشوروي دواړو دترقۍ پړاونه لنډول ، لیکن په افغانستان کې دشوروي دسرو لښکرو شکست امریکا ته ددي چانس برابر کړ

چې هغه دنړۍ دستر ځواکې په ستیج کېني.

پخپله امریکایې کتونکې وایي: چې دامریکا لخوا په افغانستان یرغل دامریکا لویه تېروتنه وه ،نن امریکا دخپلي دې تېروتنې تراخه څکې ، امریکا چې افغانستان کې په جنګ لګیاده ، له امله یې نړیوالو قضایاوو ته د توجه ګرځولو فرصت نلري ، نتیجه داده چې همداوس شمالي کوریا اټومي ازموینه وکړه ، اونړۍ ته څرګنده شوه چې هغه (شمالي کوریا) نور اټومي ځواک دی ، هم دا راز ایران هم اټومي ځواک شوی دایرانې چارواکو له قوله :دوئ اګر که کیمیاوي بم ندی جوړ کړی خو دوئ ته د کیمیاوي بم جوړول ناشونی کارندی!! که ښه ځیر شو دا هرڅه دامریکا دناسمو پالیسیو نتیجه ده ، که امریکا په افغانستان دیرغل حماقت نه و کړی ، دمذاکراتو اوخبرو له لارې یې دمشکلاتو حلولو ته پام کړی و نن



په نړیواله سطحه به دداسې نویو اودرنو چیلنجونو سره نه وه مخ .

امریکا غوښتل چې په افغانستان کې خپل یو لاسپوڅی حکومت ولري ، خو دا کار هیڅکله ممکن ندی ، ولې افغانان فطرتاً ازادي خوښوي اوپه ازادۍ مین دي ، بیا دطالبانو پشان دیو پیاوړی جهادي اوسیاسي ځواک شتون هیڅکله یرغلګرو ته ددې فرصت او موقع ورنکړي چې دافغان ولس دسرنوشت ټاکلو واګې په لاس کې واخلي ، هغوئ له خپلو اصولو او شرائطو یو په شا کېدونکی ځواک ندی ، دهغوئ په مقابل کې دمیشتو بهرنیو ځواکونو مورالونه پریوتي ، اوښکاري داسې چې امریکا یو واربیا دهم هغه منطقي انجام په لور درومې دکوم له امله یې چې له ویت نام څخه ځواکونه په تېښته ووتل که امریکا دخپل تازه شکست لپاره هرڅومره توجیهات وړاندې کړي ،خو حقیقت دادی چې امریکا جنګ بایللی ، او دا هم روښانه حقیقت دی چې په جنګ کې دښکېلتیا په وجه تر ټولو زیاته ګټه ایران اوشمالي کوریا وکړه ، اوترټولو ډېر تاوان امریکا! د امریکا سره په جنګ کې ښکېلو ! اودامریکا ملګرو هیوادو ته واوښت !

# په هندوستان کې افغانانو ته د مسیحیت دامونه!

ژ: عبید تنویر



غربیان په دې خبره اګاه او پوه دي چې که اسلام په خپل قوت او جامعیت سره په اسلامي هیوادونو کې پلی او د مسلمانانو واکمن او ریښتیني نظامونه جوړ شي او مسلماني پرګنې هم د خپلو دیني اقدارو ټینګه پیروي پیل کړي ؛ نو بیا ګرانه ده چې غرب خپل پرسوده او ناولې نسخې او حربې په اسلامي نړۍ کې خوندي او د منل کیدو وړ وګرځوي.

نو ځکه په دې لټه او سوچ کې دي چې په مسلمانانو د زور او جبر او د تروریزم د خود ساخته الزامونو ترڅنګ په نرمه لهجه او د بشردوستی په جامه کې د مسیحیت هغه منسوخ دین چې دوی هم اوس ورته چنداني التفات نلري ، خو بیایې هم د مسلمانانو د ټکولو او کمزورولو په خاطر خپور کړي او د اسلام د رشد او ودې مخه پرې ډپ او ونیسي .

په دې ورځو کې مسیحي مبلغینو له افغانستان څخه بهر په ډیر مهارت د افغانانو د تیرایستلو او منحرف کولو لپاره یو شمیر حربې په کارا چولي ، د یو شمیر کره راپورونو له مخې د هندوستان د ډهلي ښار او د دغه هیواد په هوایي ډګرونو کې د هغو افغانانو لپاره چې د تداوی او یا تجارت لپاره هندوستان ته ځي مسیحي لیوان غواړي ساده لوحي افغانان د مسیحیت په دامونو کې راګیر او د خپلو معتقداتو په وړاندې یې په دوه لارې کې ودروي.

عیني شاهدان وایي چې د غو مبلغینو د نوي ډهلي ښار په هغو برخو او ګیسټ هاوسونو کې چې افغان مسافرپکې استوګنه غوره کوي ځای نیولی ، د دې ترڅنګ کله چې په هوایي ډګرونو کې افغانان ښکته شي د مسیحیت د غه نوکران په زیاته چالاکی او مهارت مسافرو افغانانو ته ځانونه وررسوي ، له هغوی سره خپله خواخوږي ښکاره کوي ، خپل ایمیلونه او درابطي ادرسونه ورکوي او په صراحت ورته وایي چې دوی افغانان دي او د افغانستان د مسیحي نهضت کارکنان دي او غواړي په هندوستان کې د افغانانو خدمت ترسره کړي ! !؟

سرچیني وایي د غو مسیحیانو د ډاکټرانو په جامه کې هم ځای نیولی په دې سربیره چې د ناروغو افغانانو په تداوي او معالجې کې برخه اخلي په ډیر هنر او نیرنګ د مسیحیت تبلیغ هم کوي او مریض ته دا خبره په ذهن کې وراچوي چې اوس په افغانستان کې د افغان مسیحیانو شمیره

ثومیلونوتنوته رسیدلي یاني هغوی اوس دافغاني جامعې یومهمم اوپراخ قشر ګرځیدلی.

سره لدې چې په هندوستان کې په علاج اومعالجې زیات لګښت کیږي خومسیحي مبلغین په شفاخانو اودرملتونوکې له افغانانوسره دجذابو ځوانانو اونجونو په وسیله سخته خواري کاږي ترڅو هغوی افغانستان ته په راستنیدو داذهنیت خپورکړي چې هندوستان دتداوي لپاره مناسب هیواد اوښې اسانتیاوي لري

راپورونه وایي چې دغه مبلغین په پښتو اودري ژبو په هوساخبري کوي ، ځانګړی سپین لباس په غاړه کوي ، هرمریض اومسافرته دانجیل یوه نسخه چې په پښتو اودري ترجمه شوي دي دحضرت (عیسی ع ) له یوه انځوراو دنوي کال له مجللې جنتری سره یوځای توزیع کوي.

دغه انکشافات دهرات ولایت ځوتنو ناروغانو چې تیره میاشت هندوستان ته دتداوي لپاره

تللي وو رسنیو ته په خبروکې کړي ، دعبدالمنیر په نامه یو ۵۰ کلن افغان ویلي: که څوک غواړي خپل ایمان او اسلامي عقیده محکمه وساتي نو دهندوستان له تدوای څخه دې بیزار اوتیرشي ، ځکه هلته دساده لوحوافغانانو دګمراه کولو لپاره مسیحي شرمخان تیار په کمین کې ناست دي ، دغه افغان ویلي چې افغان واکمن په دغوټولو اسلام دښمنه حربوخبردی خو ځان نه پرې پوه کوي

**دافغانستان داهل تشیع یوه مشر ایت الله محسني ، دتمدن له تلویزون سره په ځانګړې مرکه کې دیوه غربي خبریال له قوله وویل چې امریکااوغرب په افغانستان کې داسلام دبدنامولو او له دیني ارزښتونو سره دبې تفاوته کولو په موخه دزرګونو رسنیو دروند بارپه اوږوړي**

دځیږونکو په اند په هیوادکې دیرغلګرو په توسط دخپور فقر ، له اسلام نه داوښتو په بدل کې غربي پناه ، اسلام اوافغان ضد فرهنګي اقدامات اودارتداد په وړاندې دکابل رژیم بې تفاوتی اوپه غیرې مستقیم ډول ورته زمینه سازي داټول هغه عوامل دي چې داسلام دمقدس دین غلیمانو ته یې داجرات اوفرصت په لاس ورکړی چې هم په داخل اوهم په بهرکې دافغانانو په عقیده او مقدساتو وبلوسي او په خپلو شیطاني لوموکې یې ونښلوي.

دکابل اداري دکورنیوچارو مځکیني وزیر بسم الله خان ، دپارلمان دمذهبي چارو په ورستی ناسته کې داخبره په ښکاره کړې وه چې ده په وخت کې ګرندی هځي وکړي ترڅو دمسیحیت دترویج اډې پیداکړي چې په پای کې یې تنهادکابل په ښارکې ۱۰ کلیساوي کشف کړي خودبندیدو په اړه یې له لوړمقاماتو نه کوم حکم ترلاسه نشوکړای

تیره اونی دافغانستان داهل تشیع یوه مشر ایت الله محسني ، دتمدن له تلویزون سره په ځانګړې مرکه کې دیوه غربي خبریال له قوله وویل چې امریکااوغرب په افغانستان کې داسلام دبدنامولو او له دیني ارزښتونو سره دبې تفاوته کولو په موخه دزرګونو رسنیو دروند بارپه اوږوړي ، محسني همدارنګه دخبریال له قوله داخبره هم کړي چې امریکااوغرب په افغانستان کې دخپلو خبري اوتحلیلي سرچینو په مټ په ۲۴ ساته کې ۱۰۰۰دروغ اواوتي بوتي نشروي

# تجلیل جشن نوروز

حافظ محمد خراساني

به همه معلوم است جشن نوروزی که روز اول ماه حمل (بهار) سال شمسی میباشد، قوامیس و فرهنگها به اتفاق نوروز را به معنای روز نو تعبیر کرده است، که با روز بیست ویکم ماه مارچ سال میلادی موافق می اید. عید نوروز از بزرگترین عیدهای مذهبي مجوس (اتش پرست) است. قرار روایت گفته شده است که جمشید یک پادشاه مشهور و معروف ایران، که مؤسس طلسمها، کرشمه های عجیب و غریب جادو و سحر میباشد، و مناطق زیاد آسیا را زیر نگین خودر درآورده بود، در ابتداء نام او جم بود یعني سلطان کلان و بعداًنام او به جمشید در آن وقت مبدل گردید، که او به سیاحت به آذربایجان رسید، آن روز اول حمل بود که آفتاب به نقطهٔ اول برج حمل آمده بود، پادشاه مذکور یک تخت مرصع را برای خود تیار نمود، وآنرا به یکجای بلند جابجا کردند، بر تخت نشست، هر وقت که آفتاب طلوع نمود شعاع و نور آن به تاج و تخت بادشاه خورد و یک کیفیت پُرنور و عجیب، غریب را پیدا کردند، همه فضاء را نور نور کردند، در زبان پهلوی شعاع را "شید" گفته میشود، لفظ شید را زیاد نمود و بادشاه بنام جمشید ملقب گردید. یعني بادشاه کلان پُر نور و روشن ویک جشن عظیم را تجلیل نمود، بعد از آن نام همین جشن جشن نوروز گردید، که تااین ساعت ایرانیها و مردم که از تهذیب ایرانیها متاثر هستند همین جشن را بنام نوروز تجلیل مینماید. (بعد از چندین سال که غرور، تکبر و فجائع جمشید از حد زیاد شد، بادشاه مشهور که بنام ضحاک (سهاک، اژدهاک) یاد گردیده، از کوه های بامیان سلطنت خود را توسیع دادند، به ایران، سلطنت جمشید یورش کردند وسلطنت آنرا زیر قبضه خود درآوردند، و جمشید را با همه طلسم های خود بقتل رساندن)

قرار روایت دیگر گفته میشود که این روز روز تولد زردشت است از این لحاظ مجوسیان این روز را به عنوان روز آغاز آیین مجوسیت تجلیل مینماید، وعدهٔ دیگر آنرا به آغاز افروختن آتش به آتشکدهٔ نو بهار بلخ که در ان زمان زیر تسلط آتش پرستها بوده به خاطر عبادت وسجده بردن به آن ارتباط داده اندکه به خاطر احترام وبزرگداشت نوروز جشن میگرفتند .بعض مردم دیگر میگویند که جشن نوروز بخاطر تجلیل روز اول سال نو یعني بهار جشن میگیرد. ذکر این جشن و عید در هیچ یک از کتابهای اسمانی نیامده، بلکه به شهادت تاریخ جشن مشهور مجوس است که از زمانهای دراز بدینسو به حیث یک عمل پُر از خرافات و فسادات وناروائیها در میان مردم ایران انتشار یافته وبعداً به مناطق همجوار مثل اذربایجان، تاجکستان، ازبکستان، افغانستان وغیره وبالخصوص در میان مردمان تاجک وفارسی زبان انتقال یافته وبه صورت جشن ملی تجلیل وبرگزار میگردد که نظامهای فاسد

وحکومتهای وقت برای عیاشی خود در تقویه وانتشار آن نقش خود را داشته اند. خلاصه اینکه نوروز گذشته از آنکه ارتباطی به اسلام نه داشته بلکه موافقه وپیروی وتقلید کافران ومشرکان بوده وتجلیل وبرگزاری آن از طرف مسلمانان از ناروائیهای رواج یافته وازحوادث وبدعتهای دخیل، وبیگانه در میان مسلمانان است وبرای حرمت وناروا بودن این قسم رسم ورواج ناروا دلا ئل بسیار است، یک ازین دلا ئل تقلید وپیروی و مانند سازی خود به کافران کافی است، رسول الله صلی علیه وسلم فرموده اند - (مَن تشَبَه بِقَوم فَهُوَ مِنهُم )- هر کس که از قومی تقلید وپیروی می کند از جملهٔ همان قوم است هکذا فرموده است خَالَفُوا الْمُشرِكِين - بامشرکان مخالفت نمائید _ درعبادت ورواجها وعادتها وغیره هکذا از عمر رضی الله عنه روایت شده (اِجتَنِبُوا اَعداَء اللهِ فِي عِيدِهِم )یعنی از دشمنان الله تعالی در عید وجشن های شان کناره گیری کنید، که همه عیدهای ملحدین ومشرکین، نوروز ومهرگان که عبارت از روز اول برج میزان میباشد، وکرسمس وغیره شامل میشود ما مسلمانها دو عیدهای رسمي داریم که عبارت از عید الفطر وعید الضحی میباشد.

بخاطر تجلیل جشن نوروز در افغانستان روز اول حمل رخصتی از طرف حکومت داده میشود و محافل حکومتی و رسمی در برخی از دوائر ولایات کشور برگزار میشود، مردم بخاطر تجلیل روز نوروز به مزارات مشهور کشور وبالخصوص به روضهٔ مزارشریف میروند و امور غیر شرعي و ناروا را انجام میدهند، و مصارف زیاد که همه اش اسراف میباشد انجام میدهد. به همین سبب رسول الله صلی الله علیه وسلم که از انحرافات امت خود پیش از پیش مطلع گردیده است، به امتیان خود میگوید که (لاتتخذو قبري عيدا )، قبر مرا میله جای وعید نسازید، رسول الله صلی الله علیه وسلم که مردم را از تجلیل جشن قبر خود منع نموده، جشن نمودن در مزارات دیگر مردم بطریقه اولی ناروا و گناه بزرگ است.

در تجلیل این جشن کارهای ناروای زیاد از قبیل فلمها، مزاقها، کنسرتها، نذرها وغیره که در شریعت مطهره ما حرام است انجام میشود.

جشن نوروز در اکثر کتابهای فقه ذکر ویک عمل نامشروع دانسته شده است. هکذا عالم مشهور ملاعلی قاري حنفي میگوید هرکس که در روز نوروز تخمی را برای مجوسیان بحیث تحفهٔ نوروزی تقدیم کند کافر میشود زیرا که با کافر بر کفر وگمراهیش کمک کرد ودر هدیه دادن از آن تقلید نمودن خود از آنها ساخت واورا به کفرش تشویق نمود، همچنین تبریکی روز نوروز به مجوسیان یا دربین خود مسلمانان ناجائز است بهمین منظور تخصیص وخوردن خوراکها سمنکها، کماج وغیره که مخصوص آتش پرستها باشد تشبه بآنها شمرده شده غیر جائز است، کسیکه در این روز بخاطر بزرگداشت نوروز به خانهٔ خود خوردنیها ومیوه اوردن خوردنش بدعت حرام است، اگر در همین روز (نوروز ) کسی بخاطر تشبه آنها در تجلیل نوروز لباس نو را پوشید، این نزد تمام علماء احناف از اعمال کفار بشمار می آید.

البته قابل ذکر است که علماء احناف تجلیل جشن نوروز را در آن زمان حرام دانسته که معتقدین دین مجوسیت موجود بودند وآن مسلمانها را کافر دانسته اند که تجلیل جشن نوروز را بخاطر خوش نمودن آتش پرستها مینمودند. واحترام جشن نوروز را بخاطر عنعنهٔ روز مذهبی آتش پرستها مینمود.

اتش پرستهابعد از آمدن مسلمانها از بین رفتند اکنون معتقد آن عقیده در عصر حاضر سراغ نیست، به همین سبب وبخاطر عدم معلومات اکثر مردم اهمیت مذهبی جشن نوروز را نمی دانند، که این یک رسم وعید آتش پرستها بود، آنها تجلیل جشن نوروز را صرف بخاطر تجلیل سال نو برگزار مینمایند، لذا از یک طرف

تعجیل نمودن به فتوای کفر آن مردم ضروری نیست و از طرف دیگر به مردم لازم است که از تجلیل همین جشن نوروز جلوگیري نمایند تا خدا ناخواسته بشکل غیر ارادی در زمرهٔ تجلیل روز مذهبي آتش پرستان نیایند اگر جشن سال نو را تجلیل مینماید باید بدون تعین روز یک روز دیگر را تجلیل نماید، تا از تشبه دور باشد.

موضوع بخاطر مطلع شدن مسلمانها در روشنی قرآن و حدیث عرض گردید، تا مسلمانها از تجلیل جشن نوروز خودداری نمایند، و اگر کسی از حرمت این عمل خبر باشد، باید دیگران را مطلع سازند. قابل تذکر است که مثل جشن نوروز تجلیل کرسمس (جشن عیسایی ها) و دیگر جشن های هنود ویهود نیز ناروا بلکه نسبت به نوروز مشابهت صریحتر و گناه عظیم تر و اطاعت واضحتر کفار است، از آن نیز جلوگیری شود، وعلماء باید آنرا مثل جشن نوروز تقبیح و ناروا اعلان نمایند.

باید به بهار از جهت دیگر نگرست، و به نازکیهای طبیعت پی برد و آثار قدرت حق تعالی را در آن مشاهده نمود، ت بظاهر آن فریفته نگردیده و از حقائق و اشاراتیکه در آن به ودیعیت نهاده شده استفاده اعظمی کرد، در بهار به آشجار و نباتات مرده سر از نو در جنبش آمده بآنها حیات نو داده می شود و خلعت های زندگی آهسته آهسته برای انسان و حیوان تهیه میگردد، از چوب خشک و زمین مرده خدواند پاک گلها، اوراق، میوه ها، جبوبات، و سبزیهای مرغوب را برای تامین زندگی بیمان می آرد، به تن و جان ارمغان پی بردن به اسرار خلقت و حکمت مرگ و زندگی پی برد. فتبارک الله احسن الخالقین.

## شـــعـر

گفت پیغمبر باصحاب کبار ==تن مپوشانید از باد بهار

زانکه با جان شما آن میکند ==کان بهاران با درختان میکند

گفت پیغمبر با صحاب شریف ==تن بپوشانید از باد خریف

زان سبب بگریز از باد خزان ==کان کند کان کرد بر باغ وازان

راویان این را بظاهر برده اند ==هم بر آن صورت قناعت کرده اند

بې خبر بودند از سر آن گروه ==کوه را دیده ندیده کان کوه

آن خزان نزد خدا نفس و هواست== عقل و جان همچون بهارست وتقاست

میل تن در سبزه وآب روان==زان بود که اصل اوآمد ازآن

میل جان اندر حیات و درحی است ==زانکه جان لامکان اصل وی است

میل جان در حکمت است و درعلوم == میل تن در باغ وراغ است وکروم

میل جان اندر ترقي وشرف ==میل تن درکسب اسباب علف

هست سر مرد چون بیخ درخت ==زان بروید برگها ازچوب سخت

درخور آن بیخ رسته برگها ==در درخت و درنفوس و درنُها

بر فلک برهاست زاشجار وفا ==اصلها ثابت و فرع في السماء

حاضران از غائبان خوشحال تر== غائبان را نیست توفیق خبر

(مثنوی)

# په شیعه مېشتو سیمو کې دلوی تحول ځر ک

عبدالرؤف " حکمت"

خو کله چې په افغانستان امریکایي ځواکونو یرغل وکړ ، نو دافغانستان دنورو اقوامو دیو شمیر تش په نامه مشرانو غوندې دهزاره افغانانو یو شمیر مصنوعي مشران او عنواني ښېرې لکه محمد محقق او کریم خلیلي هم دامریکایانو ملګري شول ، امریکایانو دخپلو پراخو تبلیغاتو او اخیستل شویو مشرانو له لارې دافغانستان دنورو برخو غوندې په شیعه مېشتو سیمو کې هم دا تبلیغات پیل کړل ، چې امریکایان او خارجیان ددوی یوازیني خواخوږي دي ، داسلامي امارت مجاهدین ددوی بدخواهان دي او که شیعه افغانان غواړي سوکاله ژوندولري نو دامریکایي یرغل په خلاف باید وسله پورته نه کړي بلکې په همکارۍ کې ژوند ورسره وکړي.

په تیرو لسو کلونو کې په شیعه مېشتو سیمو کې دامریکایانو دا ډول تبلیغات تریوه حده مؤثر ول ، یو شمیر خلک په دې تیروتل چې کیدای شي دامریکایانو او نورو خارجیانو سره په ملګرتیا کې به دوی ډېر څه ومومي ، ډېر پرمختګ به وکړي ، او له هره اړخه به ګټه وکړي.

مګر دیوې لسیزې په تیریدو لکه څنګه چې نورو افغانانو دامریکایي یرغل بدعواقب ولیدل ، دافغانستان په شیعه ټولنه کې هم دیرغل بد او ترخه عواقب کرار رابرسیره شول ، او خلکو په خپلو سترګو ولیدل چې ددوی په سیمو کې دغربیانو شتون ، کمپاینونه او فعالیتونه ددوی دټولنیز اصالت ، فکر او راتلونکی نسل په خلاف یو ستر دام دی ، چې که یې مخه ونه نیسي ، کیدای شي خورا بد عواقب ترشا پریږدي.

په تیرو لسو کلونو کې په دایکندي او بامیان ولایاتو کې دغربیانو زیاتره فعالیتونه دمرستو تر عنوان لاندې دبې دینۍ ، بې سترۍ ، غربیتوب او مسیحیت دترویج او تبلیغ لپاره وو ، په دې چاره کې ددې سیمو زیاتره هغو کسانو ونډه درلوده ، چې کورنۍ یې په غرب کې دي یا یې دغرب تابعیتونه

افغانستان یوه سني ټولنه ده ، چې تر ۹۰ فیصده ډیر خلک یې داهل السنة والجماعة فکر ته متعهد خلک تشکیلوي ، اما په دې هیواد کې په زیات شمیر کې دشیعه اثناعشریه مسلک خلک هم شته ، چې زیاتره یې دافغانستان په مرکزي ولایاتو بامیان ، دایکندي ، غزني ، سرپل ، او سمنګان کې اوسي.

په افغانستان دشوروي دیرغل په مهال لکه څنګه چې دافغانستان په سني مېشتو سیمو کې دشوروي په خلاف جهاد روان وو ، په هماغه کم او کیف دافغانستان په شیعه مېشتو سیمو کې هم دیرغلګرو په خلاف جهادي خوځښتونه ګرم او بریالي وو ، هغه مهال پ شیعه مېشتو سیمو کې خورا مهم او دپام وړ جهادي عملیات ترسره شول ، او دشوروي قواوو ته په مکرر ډول درانه زیانونه واوښتل.

اخیستي ، دوی دمدني ټولنو ، دبشري حقوقو ټولنو ، ځوانانو ټولنو ، ښځو ټولنو او نورو بیلابیلو جوړښتونو ترعنوان لاندې دغربي فکر او عقیدې تبلیغ ته متې رابډوهلې وې.

په دې وروستیو کې چې دهمدې فعالیتونو له امله په شیعه میشتو سیمو کې دځوانانو بیلاري او دښځو بې ستري او تبرج وروستي حد ته رسیدلی ، داهل تشیع ټولنو مشران ، سپین ږیري ، مذهبي مشران او مخور په دې پوهیدلي چې که ددې بهیر مخه ونه نیسي نو کیدای شي سترې فتنې وزیږوي.

په همدې اساس په هزاره میشتو سیمو خصوصا په دایکندي ولایت کې عام اولس په بشپړډول دغربیانو او دهغوی دمحلي مبلیغینو په خلاف جهاد ته متې رابډوهلې ، دوی په اړونده سیمو کې داسلامي امارت له مجاهدینو او مسؤلینو سره په تماس کې شوې ، او داسلامي امارت دحقیقت په درک سره یې ویلي چې موږ نور په بشپړډول داسلامي امارت داعیه ، پیغام او لوائح منو ، او حاضر یو چې له دې وروسته داسلامي امارت تر اشراف لاندې دیرغلګرو غربیانو په خلاف په سر او مال جهاد وکړو او غربي پوځیان ، مبلغین او ددوی محلي لاسپوځي له خپلو سیمو پسې واخلو.

د دایکندي ولایت لپاره داسلامي امارت جهادي مسؤل ملاسید سلیمان اغاوایي چې د دایکندي له ټولو سیمو څخه په پراخ شکل مشران ، مخور او عام خلک ورسره په رابطه کې شوي ، له اسلامي امارت سره یې پیوستون اعلان کړی ، او دهرډول همکارۍ ژمنه یې کړې.

د دایکندي دسنګ تخت ، شهرستان او کجران ولسوالۍ چې پخوا په کې دجهادي عملیاتو څرک نه وو ، او س په کې مجاهدین منظم تشکیلات لري ،دکجران اکثره برخې ددښمن له واکه وتلې او دمجاهدینو لاس ته لویدلې ، په نورو ولسوالیو کې هم سږکال عملا عملیات پیل شوي چې دښمن یې له سختې وارخطایي سره مخ کړی دی.

یوه میاشت وړاندې د دایکندي دشهرستان په ولسوالۍ کې دمحمدعلي فدایي په نامه یو قومندان له خپلو **۵۰** افرادو سره له مجاهدینو سره وصل شو ،دغه راز دسنګ تخت ، نیلي ، میرامور او بندر له سیمو هم ګڼ شمیر مخور او ولسي مشران له مجاهدینو سره په رابطه کې شوي او دهرډول همکارۍ ژمنه یې کړې ، د دایکندي مسؤل ملاسلیمان اغا وایي همدا اوس موږ ټولو ولسوالیو ته تشکیلات ورکړي دي څرنګه چې په دایکندي کې سختې واورې پرتې دي نو تراوسه عملیات ممکن نه دي ان شاءالله دپسرلي په راتګ سره په ټولو سیمو کې علني عملیات پیل شي.

په دې وروستیو کې چې په کجران او شهرستان ولسوالیو کې جهادي عملیاتو زور واخیست نو دښمن یې سخت وارخطا کړ ځکه دوی پخوا بامیان او دایکندي هغه مثالي سیمې بللې چې ددوی ترمکملې سلطې لاندې وې له همدې امله دښمن په دایکندي کې له خلکو وغوښتل چې دولسوالۍ په سطحه ۲۰۰ تنه اربکیان ورکړي ، خو خلکو په ټولو سیمو کې ځواب ورکړی او ددښمن داغوښتنه یې نه ده منلې.

د دایکندي ګیزاب هغه ولسوالي ده چې له مرکز پرته دمجاهدینو په لاس کې دي او دښمن په کې یوازې سمبولیک شتون لري ، اجرستان چې پخوا دغزني مربوط وه خو د اسلامي امارت په تشکیل کې د دایکندي مربوط بلل کیږي هم دمجاهدینو په ولکه کې ده یوازې دسنګر په سیمه کې دښمن یوه قرارګاه لري چې دهو له لارې ورته اکمال کوي په نورو شیعه میشتو سیمو کې هم اوس جهادي فعالیتونه روان شوي ، چې دې ته په پام سره کیدای شي په نږدې راتلونکي کې په دې سیمه کې دجهاد په ګټه دلوی تحول شاهدان واوسو.

# دافغانستان پر اقتصاد داستعمار اغیزې

عبدالله "اخندزاده "

ملګري هیوادونه چې افغانستان ته ی ې یرغل راوړی دي اقتصادي وضعیت یې خورا ښه دي لکه برطانیه، فرانسه، المان اوداس ې نور.

دغو ټولو هیوادونو افغانستان ته دراتګ په مهال افغانانو ته دا هیلي ورکړې چ ې ګواکې افغانستان به له راغلیو هیوادونو سره په اقتصادي ډګر کي اوږه په اوږه ودروي ، او دتل لپاره به په خپلو پښو ودریږي. خو اوس پوښتنه داده چي ایا دا وړی شړی هم شوې که څنګه؟

داقتصاد په ژبه هرهغه هیواد چي په خپلو پښو ولاړ وي او ټول ې بنسټیز ې اړتیاو ي لکه اوبه، بریښنا ، ګاز، ډاکټر، انجینر، دعالي تحصیلاتو تعلیمي مراکز او داسي نور ددغه هیواد خپل وي ورته Developed Country وایي. اودغې پروسې ته Development[1(1)] وايې.

له پورتني تعریف نه دا جوتیږ ي چ ې اقتصادي ترقي یا پرمختګ او مړتیا دوې بیلې خبر ې دي. دبیلګې په توګه عربي هیوادونه مړتیا لر ي خو د پرمخ تللي اقتصاد درلودونکي هیوادونه (Developed Countries) نه دي. بالعکس غربي هیودونه بیا اقتصادي پرمختګ اومړتیا دواړه لري.

ددې خبري د یادولو موخه دا ده چې په اقتصاد کې اصل هدف اقتصادی پرمختګ( Development ) دي نو کله چ ې یو هیواد اقتصادي پرمختګ ومومي دهغه هیواد دمړتیا لپاره لار برابره شي. په دې مقاله کې همد ا ټکي پلټو چي ایا داستعمار په راتګ سره افغانستان ربښتیا هم اقتصاد ي پرمختګ( Development ) کړی د ي که څنګه؟

امریکا له اقتصادي اړخه دنړی ترټولو پیاو ړی هیواد دي. د بیلګې په توګه ویلای شو چې یوازې د امریکا دمایکرو سافټ شرکت کلنی ګټه د ډیرو هیوادونو ترکلنی بودجې (Budget) زیاته ده، په ۲۰۱۱م کال کې دمایکروسافټ شرکت کلنی ګټه ۲۳۱۵۰ میلیونه ډالره و* چ ې په همدې کال کې د لیبیا ، سوډان، یمن، لبنان اوګن شمیر نورو هیوادونو ترکلنی بودجې ډیره ده. همد ارنګه ګڼ شمیر امریکایې شرکتو نه خورا ډیر ې سرمایې لر ي. له دې سره سره دامریکا هغه ملګري هیوادونه چي افغانستان ته ی ې یرغل راوړی دي اقتصادي وضعیت یې خورا ښه دي لکه برطانیه، فرانسه، المان اوداس ې نور.

(1) په پورتنی تعریف اقتصادپوهان یونظرندی خودټولو تعریفونو خلاصه ورته ویلای شو

* Microsoft corporation 2011, Annual report.

داقتصاد ي پرمختګ لپاره يو لړ شرائط دي چې په لاندي ډول يې يادونه کوو .

## انفراسټرکچر (Infrastructure)

په اقتصاد ي علومو کې سړک، برېښنا ، اوبو او ګا ز نظام ته په مجموعي توګه انفراسټرکچر وايي *. چې د هيواد په پرمختګ اوترقي کې پراخه ونډه لري.

کله چې لويديځوالو د هيواد په ټولو برخو منګولې ښخې کړې، د افغانستان ټولې لوی ې لارې پخې او ورغول شوې. لکه دکابل کندهارلويه لار، دکندهارهرات لار اودکابل مزارشريف اوتورخم لارې چې په ډېر ښه معيار جوړ ې شو ې دي، خ و دا ټولې هغه لار ې دي چ ې د امريکا او اتحادي قواو پوځيان په لويه کچه ورباندې تګ راتګ لري، حال دا چې دکابل ښار د ننه ډېر ې داسي مهمې لارې وې چې پخول او رغول يې اړين وو خو تر ډيره وخته لا پخې شو ې نه وې ، لکه دکابل په ښار کي د کوټ سنګي سړک چې ډېره اړتيا ورته لیدل کېده خو ترکال ۲۰۰۹ پوري لان ه وو پوخ شوی. له بل ې خ وا په زابل ولایت کي دقلات اوسېوري سړک، چې ډېر ژر او په لږ وخت کي پوخ شو دا هغه لار ده چې دعامو وګړو يو يا دوه ګاډي په ټوله ورځ کي پرې عبور کوي، خو ددوی د پوځيانو او شوبلو تګ راتګ پر ې خورا ډېر دي. نو په دې سره نيتجې ته رسيږو چې استعمار يوائې هغه سړکونه او لارې پخول غواړي چې ددوی تګ راتګ پرې کيږي او هغه سړکونه چې ددوی تګ راتګ پ رې نه کيږي پخولو ته يې زړه نه ښه کوي. دا د سړکونو حال دي چې د بيارغاونې په پروسه کې دبيلګې په توګه استعماليږي او ويل کيږي چې تر ټولو زيات لګښت پرې شويدي.

برېښنا هم د هيواد په پرمختګ کي خورا ستره ونډه لري ځکه چې فابريکې اونور د رغاونې کارونه له برېښنا پرته ناشوني دي. عموما دبرېښنا د توليد لپاره دوه لارې کارول کيږي، يعني اوبه او پټرول (په اوس وخت کې دهوا او لمرپه واسطه هم برې ښنا جوړيږي)، خوله بده مرغه په افغانستان ک ې دپټرولو زېرمې لا په کار ندي اچول شوې نو اوسمهال دبرېښنا دتوليد يوازنۍ لاره د اوبو ده. په افغانستان ک ې دکجکي بند چې درې واړه يونټونه يې د ۵۱ مېګاواټ برېښنا د توليد توان لري چې قابو ځلورو جنوبي ولايتو نو ته برېښنا ورکولای شي *. خو دتاسف خبره داده چې تر اوسه هېڅ کار پرې شوی ندي او د هيواد په ډېره برخه کې برېښنا د پټرولو (هغه پټرول چې له خارجه راوړل کيږي) په مټ جوړيږي [2(2)]، چ ې نه يوازې د کورونو لپاره کفايت نه کوي، بلکې په ملکي بودج ې باندې هم خورا بد ې اغيزې لري ځکه چ ې پټرول افغانستان ته له نورو هيوادونو راوړل کيږي. لدې سره سره په هيواد کې دبرېښنا نشتوالی دصناعت په ځانګه ډير ې بد ې اغيزې لري، دعالمي بانک د يوې ټول پوښتني له مخې په افغانستان کې ۷۶ سلنه کاروبا رې وګړو دبرېښنا نشتوالی لوی خنډ بللی د ي(AISA) [3(3)].

* presentation by Prof. Dr. Abdul Rahman Ashraf, Senior Advisor to President for Mines and Mnergy, 2009.

(2) دجرمني په مرسته د ماهيپر اوسروبی په وندونو کی داوبوپه په سبب برېښنا جوړیږی چی یوازی دکابل دښاریانولپاره لا پوره نده .

Source: Ministry of finance, Development Cooperation Report, 2010.

3 Afghanistan Investment Support Agency, Annual Report 2008-09. (3)

* Routledge Dictionary of Economics, Second edition 2005, By Donald Retherford.

ګاز چې د افغانستان په شمال کې پراخ ې زېرم ې لري، که په کار واچول شي یوازي په کورونو کې د سون لپاره نه بلکې په فابریکو کې په پراخه کچه کار یدلای شي. لکه په پاکستان کې چې ۹۵٪ ګا ز په فلبریکو کې کاریږي.

افغانستان یو له هغو هیوادونو څخه دي چې د وارداتو ( Imports ) کچه یې د صادراتو (Exports) په پرتله ډېره زیاته ده. په ۲۰۱۰ م کال کې واردات ۳۰۸ بلیونه ډالر ه وو چې د GDP [4] ۲۴٪ کیږي خو صادرات بیا د GDP ۱۵٪ وو، د صادراتو او وارداتو دومره زیات توپیر د هیواد په اوږه ډېر دروند بار دي. یدي ۲۴٪ کي ډېره ونډه د پټوولو راوړنه هم ده، چې دغه پیټی دګا ز په مرسته تریوه حده کم یډای شي. له دې سره سره ګا ز د ځنګلونو د پرېکو ن مخه نیسي او د هیواد د عایداتو په ډېرولو ک ې خوراډېره ونډه لري خوله بده مرغه دګا ز زېرمي لا ترځمکي لاندي پاته دي .

## تعلیم اوتکنالوژي:

داقتصادي پرمختګ لپاره تعلیم هم ستر رول لوبوي. ښه او معیاري تعلیم د تکنالوژي د پرمختګ لپاره لومړی قدم دي، یا په بله معنی د تکنالوژي پرمختګ تره غه پور ې ناشونی د ي ترڅو چې تعلیم او تحقیق ته لاره ن ه وي پرانستل شوي.

تعلیم په عامه توګه په دوو برخو وېشل کیږي:

سائنسي علوم( Natural sciences ): لکه کیمیا ، فزیک، بیولوژي... معاشرتي علوم(Social sciences ): لکه اقتصاد ، حقوق، سیاست، اداره او داسي نور.

ددې خبري د یادولو موخه داده چې د اقتصادي ترقي او پرمختګ لپاره سائنسي علومو ته ډېره اړتیا ده. ل ه دې خبري هم انکار نشي کیدای چ ې معاشرتي او ټولنیزو علومو ته هم په خپله اندازه کي اړتیا شته خو داقتصادي پرمختګ لپاره لوم ړی ډول علومو ته خورا ډېره اړتیا ده.

په افغانستان کي د پوهنې وزارت د معلوماتو لمخ ې تر اوسه ۲۴ حکومتي او ۱۰ شخصي پوهنتونونه جوړ شوي دي، چې د تیر په پرتله د خوښی پیغام دي خو دا شمېره دافغانستان ترغوښتني ډیره زیاته او د معیار لخوا دنږی د پوهنتونو په پرتله ډېر ښکته دي. د کابل، جلال اباد ، کندهار او هرات پوهنتونونو نه پرته (په دغو پوهنتونونو کي هم دیوه هیواد په کچه دیادوني وړکار ندي شوي په سائنسي علوموکي تحقیق له نشت سره برابر دي، ګڼ شمېر نورې ستونزې چې کابل پوهنتون خپله په ګوته کړي دي ، هم شته. حال داچې ځیني داسې ستونزې هم شته چې دیوه هیواد له مرکزي پوهنتون سره هیڅ وړ ندي) ډېر داسي پوهنتونه دي چې تراوسه خپله انټرنیټ پاڼه هم نه لري، داستادانو تعلیم ترلسانس یا ماسټري پورته نه دي او یوازي هغه علوم پکي درسیږي چې لابراتوارته پکي اړتیا نه وي، د شاګرد استاد تناسب ډېر ښکته دی، آن تردې چې په ځینو پوهنتونو کي د محصلینو شمېره تر اتیا ۸۰ ډېره نه ده. لدې سره سره دافغانستان دلوړو زدکړو اداري د صنعت له څانګي سره هیڅ تړاوه

: په یوه هیوادکی په مجموعی توګه په یوه کال کی دصنعت اوخدمتونوپیداوار ته وای ې

GDP(Gross Domestic Product) [4]

لري، يعني دواړه له يوبل سره همکاري ندي چي خپلي تجربې له يوبل سره شريکي کړي ♦[4].

## صنعت او پانگونه: -

افغانستان يوله هغوهيوادونو څخه دي چ ې خپله ډيره تکيه يې په خارجي مرستو ده، په کال ۲۰۱۱ کي دخارجي مرستو تناسب له GDP سره ۷۱ وو يعني په ۱۰۰ کي ۷۱ افغاني خارجي کومک دي چي د GDP خورا ډېره برخه ده، همدارنگه دغه تناسب د گاونډيو هيوادونو په پرتله ډېر زيات دی. د پاکستان دغه تناسب ۱،۱٪، دايران ۱، اودازبکستان ۲۰۴٪ دی. يعني دپاکستان د GDP په ۱۰۰ کي ۱،۰۱ روپۍ، دايران ۰،۱ تمن اودازبکستان ۲۰۴ سوم خارجي کومک دي چي دافغانستان په پرتله ډېر لږ برخه ده. ♣ داقتصاد په نظر ددغه تناسب ډېروالی ښه زېری نه دي ځکه کوم هيوادونه چي په نړۍ کې ي پرمختللي بلل کيږي دهغو دغه تناسب بيخي صفروي.

په افغانستان کي ددغه تناسب ډېروالی دا جوتوي چ ې افغانستان دم گړۍ لا په خپلو پښو ولاړ ندی او لا هم ډېر پراخ لاس نيوي ته اړتيا لري. خو اوس پوښتنه داده چي هغه کوم لاملونه دي چ ې افغانستان يې دې ته اړ کړی چې بهرنيو هيوادونو ته دمرستې لاس اوږد کړي؟

ددې پوښتني ځواب يو څه تفصيل ته اړتيا لري. په اقتصادي علومو کې په لنډه توګه دوه څانګي دي:

۱. دخدمتونو څانګه (Services Sector) ۲. دصناعت څانګه (Production Sector).

داقتصادي ترقي لپاره دصناعت څانګې ته د خدمتونو دڅانګي په پرتله ډېره اړتيا ده، ځکه چي دبېلابېلو مصنوعاتو فابريکې جوړول دهمدې څانګي کار دی. ترڅو چې دصناعت څانګه فعاله شوې نه وي افغانستان به دهروخت لپاره نورو هيوادونو ته په لاس غځولو اړ وي. خوله بده مرغه په افغانستان کې دصناعت دڅانګي په پرتله دخدمتونو په څانګي ډېره بوديجه کارول کيږي، اودپام وړ خبره خولا دا چې کومه بوديجه چې د صناعت په څانګه کې کارول کيږي هغه هم يوازې او يوازې د خوراکي توکو صنعت وي. دېلګې په توګه دافغانستان دپانګې اچونې دملاتړ اداري (AISA) (Investment Support Agency Afghanistan) د يو ه خپاره شوي راپور له مخې په کال ۲۰۰۸-۰۹ په (GDP) کې دصناعت دڅانګي ونډه ٪۲۵ وه خو د خدمتونو د څانګي ونډ ه په همدې کال کي ٪۴۱ وه، دصناعت په څانګه کي په ٪۲۵ کي ٪۹۰۲ دبيارغوني په څانګه (Construction Sector)[5(5)] کاريږي. په پاته ٪۱۲۰۲ کي ٪۹۵ بودجه يوازي د خوراکي توکو په جوړولو کاريږي. دياد شوي راپور دالاندي ټکي دپام وړدي.

**"This means that growth in manufacturing sector is totally dependent on the growth of food and beverages sector"**

((معنی داچي دصناعت دڅانګې وده په بشپړه توګه دخوراکي توکو او د مشروباتو دڅانګې د ودې په غاړه ده. ))

دايسا (AISA) راپور د سرمايه کارۍ او پانګونې هم ډېر ښه خبر نه لري، خارجي پان ګونه (Foreign Direct Investment) چ ې په کال ۲۰۰۷ او ۲۰۰۸ کي د GDP ٪۲۰۵ وه، په ۲۰۰۹ کې دغه شم ېره ۱۰۳ او په ۲۰۱۰ کي آن

♦ Higher Education Reform; Now and Then: The Governance and Sustainability of Higher Education in Afghanistan ,A Case Study of Higher Education Enrolment in Afghanistan, 2011, By Shakirullah Shakir.

4 Development cooperation report 2010, Published by ministry of finance Afghanistan.

♣ Development cooperation report 2010, Published by ministry of finance Afghanistan.

(5) [5] په نوره نړۍ کې دبيارغونې څانګه دصناعت په څانګه کې نه شمېرل کيږي

اداري فساد یوله هغو ناخوالو دي چي دافغانستان دپرمختګ لپاره ستر خنډ دي، له بده مرغه د وخت په تېرېدو سره ددې په ځای چي اداري فساد تر کنترول لاندي ونیول شي او د ډېرېدو مخه یې ډب شي، لا هم هرې برخې ته سرایت کړی دی. د Transparency International Corruption Perception Index له مخې په کال ۲۰۰۵ کې افغانستان په ۱۵۹ هیوادونو کې په ۱۱۷ نومره وو، په ۲۰۰۷م کې په ۱۸۰ هیوادونو کي په ۱۷۲ نومره وو یعني په اداري فساد کي د نړۍ په کچه په اتم نمبر قرار درلود. په ۲۰۰۸م په نړۍ کي پنځم نومره وو، خو خبره هله نوره هم ورانه شوه کله چي افغانستان په ۲۰۱۰ کي په اداري فساد کي په ټوله نړۍ کي دوهم مقام خپل کړ. داداري فساد شته والی یوه ناروغي ده خود هغه ډېروالی او تکثر ډېره د خواشینۍ وړ خبره ده.

د USAID Afghanistan د یوه راپور له مخ ې اداري فساد نه یوازي دشخصي کاروبار مخه نیسي بلکې د خارجي پانګوني او تعلیم په پرمختګ کې خورا لوی خنډ دي. له دې سره سره اداري فساد د امن او انصاف راوستلو مخه نیسي، ځکه چ ې په افغانستان کې تر ټولو زیات اداري فساد په پولیس او قضا کې دي، همدا دوه خنډونه دي چي پانګه اچونه لا په شا تمبوي.

راپور زیاتوي چي په کال کي یو خل ٪۲۵ افغانان پولیس ته او ٪۱۸ افغانان قضا ته رشوت ورکوي. په ټولیزه توګه هردوهم کس په افغانستان کي حکومتي چاروا کو ته رشوت ورکوي، همدا لامل دی چي په کال ۲۰۱۰ کي په هیواد کي رشوت د GDP٪۲۳ وو

دا چې په افغانستان باندې د امریکا یرغل دوولس کلن شو، لا هم افغانانو د اقتصادي ډګر بایللی، او د بریا تر پولې ندي رسیدلي. افغانستان په نړۍ کې یوله درویشتو (۲۳) ورسته پاته (Least Developed) هیوادونو څخه دي، افغانستان په نړۍ کې د ژوند دمعیار په لحاظ په ۱۲۹ هیوادونو کي په ۱۵۵ نومره دي، او دنړۍ په کچه په اداري فساد کې دوهم ځای نیولی دي، افغانستان کي ٪۴۲ افغانان دغربت تر لیکې (Poverty line) لاندي ژوند کوي، افغانستان په نړۍ کي دکوکنارو په تولید کې لمړي مقام خپل کړي دي، افغانستان کي ٪۸۰ خلګ په بدامني ژوند تیروي ♦. 2012، 16، نومبر، پنځشنبه

تر ۰۴٪ پوري ورسیږده. له راپور سره سم داخلي پانګونه (Domestic Investment) هم له کال ۲۰۰۲ وروسته د کم ېدو په خوا روانه ده. دمجموعي پانګونې کابو ٪۸۲ پانګونه یوازي په کابل ښار کې شوېده.

د AISA د خپاره شوي راپور له مخې په افغانستان کي څلور پارکه جوړ شوي دي، د بګرامي پارک، دمزارشریف پارک، دحصارشاهي پارک اود کمري (کابل) پارک. خو د تاسف خبره داده چ ې په بشپړ راپور ک ې دیوې فابریکې جوړلو یادونه هم نه ده شوې. له دې خبري هم انکار نشته چي دپارکونو جوړول او ودانول په خپل ځای ک ې ارزښت لري مهمه خبره لا دا چې اوس مهال په افغانستان کي دترجیحاتو تعین ته هم ډېره اړتیا لیدل کیږي *.

## اداري فساد (Corruption)

* Afghanistan Investment Support Agency, Annual Report 2008-09.

♦ Afghanistan Country Report, BTI 2012

# جهاد کې د نظريې ونډه

عاصم وطنپال

له هغه وخته چې د اسلام سپيني وړانګې د فاران په غرونو وځليدې او مسلمانانو ددې خاورينې کرې تر اخرې پيڅکو د همدې باطني روښنايي په نشر کې نه ستړې کيدونکې هلې ځلې شروع کړې، ډيرو لارويانو ورکې خپل مزلونه تر آخري سلګو پورې طی کړل چې په مختلفو مدارجو وروختل او خپل ارمانونه يې له ځان سره د خاورو ميلمانه کړل چې تر دې ګړی پورې ادامه مومي ،او په همدې سره يې خپله شرعي وجيبه هم ادا کړه.

ددې بهير لارويان به دخپل ټاکلي هدف په لور ګړندي روان و که څومره خنډونه به مخې ته راتلل له هغو څخه به نه اغيزمن کيدل.

دا دومره ستره جذبه په انسان کې چې له خپل مال ،عيال ، او خواږه ځان څخه تيريږي او ټول دنيوي عشرت شاته پرې ږدي دا اسلامي فلسفې يوه ځانګړې درلودنه ده چې دا هر څه دايماني جذبې او اسلامي اصولو څخه په کامله توګه دبرخمن کيدو په اساس دي.

دنيمګړې دنياوي ژوندانه لپاره که يو څوک له خپل مال او نورو زړه پالو څخه تير شي دا به شونې وي مګر له خپل نفسه تيريدل شايد ورته له زغمه وتلي وي،

نو دا هر څه په باطني صفتونو کيږي چې نفس سره يوه ځانګړې جذبه منځ ته راځي او دهغې په توسط يو څوک کولای شي ډير هغه کارونه چې په عام انساني فکر کې ناشوني وي انجام کړي

خو که يو څوک دا ووايي چې دا هر څه په ايماني او نظرياتي جذبه دي نو له مومن اولس سره د مقابلې توان څنګه کافرانو حاصل کړ ؟

دا ځکه چې هغوی ته هم يو هدف او يو نظر ټاکل شوی وي اګر که دطاغوت لار وي نو بيا هم دخپلې باطلې عقيدې په بنسټ جنګيږي او هغه کارونه انجاموي کوم چې مسلمان دخپلې پاکې عقيدې په بنا کوي او دا باطل فکر دوی ته خپل پاپان او مذهبي مشران هلته لا سپين وګرځوي په کومه ګړی کې چې دوی له خپل وطن څخه اسلامي هيوادو ته داستبداد په موخه راروانيږي نو ځکه يې دا د ظلم اور دوحشت په لمبو کې رانغښتی وي.

دباطل په مقابله کې اګر که هر څومره مسلمانان او هغه هستۍ چې په دنيا کې ورپورې ډير اميدونه تړلي و هغوی خپل ژوند له لاسه ورکړي او ډير شهيدان ، زخميان ، بنديان ، يتيمان ، او شکنجه

شي دا به دا اسلامي ځواک په کميدا او کمزورتيا دلالت نشي کولای ځکه دا جګړه په افرادو او وګړو نده بناء بلکې دا په يوې نظريې پورې تړلې چې دا نه ختمدونکې مقابله ده ، له همدې وجې خو رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي چې دا دباطل په ضد جګړه به د قيامت تر ورځې ادامه لري نو تر څو چې دا اختلاف وي او په ځمکه ټول دين دالله تعالی جاري شوی نه وي دا جګړه به هم دوام لري.

له څوارلسمې صدی څخه آن تر دې دمه پدې يون او بهير کې ډيرو مومنپالو خپل روحونه دالله تعالی دربار ته وسپارل او تاريخي کارنامې يې سرته ورسولې دوی اګر که له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې او خپل عام اسلامي وګړي يې بې اسرې پريښول مګر دا دافرادو کميدل او شهيدانيدل به دې بهير ته هيڅ زيان ونه رسوي ځکه چې زمونږ اقدامات ، پيغمامات ، جنګيدل ، او ټولې هلې ځلې د نظريې او عقيدې په اساس دي او افرادو پورې تړاو نلري.

چې کومو کسانو د شهادت جامونه نوش کړي هغوی خپل مطلوب ته ورسيدل او ددوی په نقصان سره په امارت ، او قانون کې تبديلي ناشونې ده.

دبيلګې په توګه د احد په غرا کې چې د هجرت په دريم کال پيښه شوه او کافران د بدر دغزا دانتقام په موخه مسلمانانو پسې مدينې منورې ته راغلل لکه دا نن هم غربي کفر په زرهاوو ميله واټن مسافه طی کړې او مونږ پسې راغلي نو مسلمانانو په دې غزوه کې خورا زيات شهيدان ورکړل ، چې هر يو يې مسلماني نړۍ ته يوه ستره هستی وه خو د مبارک عليه السلام تره حضرت حمزه رضی الله عنه پکې ځکه د يادونې وړ ده چې د دې شهيد په تاريخ پورې ځانګړې مطالب تړاو لري چې د کافرانو د ظلم او وحشت څرګندويه ده ،

په دې غزوه کې دا آوازه هم شوه چې ګواکې پيغمبر عليه السلام او نور غټ صحابه کرام هم په شهادت رسيدلي،

نو ابو سفيان چې ځان کامياب باله او دخپل لښکر مشري هم ورپه غاړه وه هغه په زوره آواز وکړ أفی القوم محمد ، أفی القوم ابن ابی قحافه، أفی القوم عمر ابن الخطاب؟

دا نعره يې درې ځلې تکرار کړه چې آيا تاسو کې اوس ستاسو سالار محمد عليه السلام ستاسو دمبارک عليه السلام مخلص او لومړنی دوست ابی بکر او ستاسو دا سلام دملا تير عمر فاروق رضی الله عنهم شته ؟

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايل چې تاسو جواب مه ورکوئ دعمر رضی الله حوصله تنګه شوه او په پوره جذبې سره يې جواب ورکړ چې دا محمد دا ابوبکر او دا زه يم !

خو چې کله ابوسفيان د نظريې خبره وکړه چې(اعل هبل) او په خپلو بتانو يې فخر کاوه چې هبل ددوی د کلی غټ بت و او ويل يې هغه پورته ده نو اوس رسول الله وويل جواب ورکړئ !

حضرت عمر وويل څنګه جواب ورکړو نو پيغمبر ورته زياته کړه چې ( الله اعلی واجل )

الله تعالی ډير پورته او دستر عظمت څښتن دی

هغه بیا وویل لنا العزی ولا عزی لکم ! مونږ دعزا بت لرو او تاسو یې نه لری نو پیغمبر علیه السلام حضرت عمر ته هدایت کوي چې (لنا المولی ولامولی لکم)

هغه بیا زیاته کړه چې دا جنگ دبدر په مقابله کې وه هلته مو مونږ ته ماتې راکړې وه او دلته مو تاسو ته درکړه نو مونږ سره برابر شو نو علیه السلام فرمايي چې هیڅکله نشو برابریدای ځکه زمونږ مړي په جنت کې، او دتاسو په دوزخ کې دي.

نو پیغمبر علیه السلام د جواب اجازه نه ورکوله تر څو هغه د عقیدې او نظریې په هکله دریځ وړاندې کړ ، چې ابوسفیان مخکې د افرادو او وگړو خبره کوله نو هغه دجواب جوگه نه وه ځکه چې پیغمبري کاروان د وگړو په

شهیدانید و نه تم کیږي او دا به پرې نور هم پیاوړی کیږي.

اگر که داسلام لارویان ډیر هم شهیدان شي په هغوی پیغمبر علیه السلام دخفگان اظهار کړی خو هغوی خپل اصلي هدف تر لاسه کړی نو دا په دې معنی نشي کیدای چې لدې امله به اسلامي فوجونه کمزوري شي او دا کاروان به له ناکامی سره مخامخ شي.

داسلام په مقدس دین کې هم په افرادو له فخر کولو څخه منعه راغلې لکه دحنین په غزوه کې چې دمسلمانانو شمیر ډیر زیات و نو هغوی په خپلو ځانو ونازیدل ،دا کار الله تعالی ته خوښ نه و ، نو صحابه کرام په دې غزوه کې له سختو مشکلاتو سره مخامخ شول لکه الله تعالی فرمايي: (اذ اعجبتکم کثرتکم فلم تغن عنکم شیئا وضاقت علیکم الارض بما رحبت) هغه وخت یاد کړه چې تاسو خپل ډیروالي په تعجب کې واچولئ او تاسو ته یې هیڅ فایده درنکړه او په تاسو پراخه ځمکه راتنگه شوه.

ځکه چې ایماني جنگ ایمان پورې اړه لري او د افرادو په توکل پورې کوم تړاو نلري.

همدارنگه په غزوه مؤته کې هم کله چې کفار دمسلمانانو څو چنده زیات و او دمسلمانانو د یوه اس په مقابله کې د کافرو سل اسان و نو په اول کې ځینو مومنانو زید ابن حارثه ته وویل چې جنگ به نه کوو او ځینو ویل چې مدینې منورې ته به خبر لیږو تر څو کومک راولیږي خو دمسلمانانو امیر زید بن حارثه چې کله عبدالله ابن رواحه ته دمشورې په توگه وویل نو هغه تقریر وکړ چې

(لسنا نقاتلهم بعددٍ ولاعُدَةٍ ) مونږ خو په اسبابو ، وگړو ، قوت ، او ظاهري شیانو نه جنگیږو او نه پرې توکل لرو ، بلکې زمونږ جگړه یواځې دالله تعالی په ذات په

ولستُ اُبالی حین اُقتل مُسلِماً

علیٰ اَیِّ جَنبٍ فی اللهِ مصرعی

توکل او دهغه درضا لپاره ده نو که هر څومره مخالف لښکر زیات وي مونږ به ورسره جنګیږو او هیڅکله به هم ددوی له تعداد څخه متأثره نشو نو همغه و چې کله جګړه وشوه نو فتحه دمسلمانانو په برخه شوه او کفار له ډیر تعداد سره سره هم له شکست سره مخامخ شول.

پدې غزوه کې اګر که دمسلمانانو زیات شمیر وګړي په شهادت ورسیدل چې همدا عبدالله ابن رواحه ،زید ابن حارثه او داسې نور....... مګر دا بیا هم داسلام په نفعه شمیرل کیده ځکه چې جنګ دالله تعالی دقانون دتنفیذ لپاره کفارو ته دشکست په موخه وي هغه پکې ادا شول او کوم انسانان چې شهیدان شول نو هغوی هم خپل اعلی مقصد ته ورسیدل.

له همدې کبله چې اصل کې دکفر نظریه ختمول دي او داسلام رایجول دي داسلامي امت سردار به دکفارو له بادشاهانو څخه تحایف هم قبلول چې داد اسلام په ښه سلوک او ګاونډیتوب او ښو اړیکو شاهدي لري او ددوی له شخصي معاملاتو څخه به دبیزارۍ څرک نه معلومیده خو که کله به دوی داسلام خلاف کومه خبره وړاندې کړه نو بیا به ورته دبرداشت وړ نه وه

لکه دروم بادشاه رسول الله مبارک ته تحفه هم رالیږلې وه ، او دپیغمبري رسالې قدر یې هم کړی و ، خو چې کله رسول الله مبارک ته معلومه شوه چې هغوی داسلام خلاف قدم پورته کوي ، نو مدینه منوره کې دیو لوی جنګ تابیا نیول کیده چې ټولو څخه غوښتنه وشوه تر څو پدې عظیمه غزا کې دځان او مال په شمول برخه واخلي او دتبوک تاریخي غزا منځ ته راځي : چې د جیش العسره یعنې دسختیو لښکر چې خورا ډیر زیات له سختیو څخه ډکه غزا وه چې اسلامي لښکرو ورکې یوه میاشت پیاده مزل طی کړ ،

په سر کې تحفه ورځخه قبلول او په آخر کې چې د عقیدې سره مقابل دریزي وشوه نو داسې لښکر یې په مقابل کې دریږي چې دوی مامور و ټول به ځي که څوک پاتې کیږي دهغوی توبه هم په ډیرو عاجزیو بخښل کیږي.

نو نړیوال دې په یاد ولري چې که دامسلمانان هر څومره تاسو شهیدان کړئ ، کورونه یې بمبار کړئ ، ماشومان یې یتیمان کړې ، ملا امامان په جوماتونو کې په وینو ولړئ ، ښځې په ودونو کې په وینو کې لتې پتې کړئ دهیواد ننګیالي په غرونو او کورونو کې په چاپو کې شهیدان کړئ دا لړئ به تمه نه کړئ !

ځکه دا دهغه پیغمبر علیه السلام هغه جوړ شوئ لښکر ده چې دهغوی توکل په دغو افرادو او غړو نده بلکې دهغوی توکل دالله تعالی په ذات او دهغه په رضا ده نو که هرڅومره تاسو دا اور مړ کوئ دا به نور هم تازه کیږي او دا هوا به داور جوش نور هم تیزوي او څوک چې په شهادت رسیږي هغه به دجنت په لور ځي او دهغوی دوینو هر یو څاڅکی به تاسو ته دانتقام پیغام وي چې هیڅکله به له دې پاکې خاورې څخه بریالي ونه وځئ او آخري برخلیک به مو دمسلمانانو په خاوره کې وي او بالخصوص به درته انشاءالله د ګران افغانستان خاوره مقبره جوړیږي چې دا انقلابي خاوره یو اوږد تاریخ لري چې په آخر کې تاسو ته د همدې هیواد نومیالی او تل پاتې تاریخ ډالی کوو.

# امریکا په افغانستان کې بشپړه ماته وخوړه!

احمدشاه "احمدزی"

دا چې امریکایانو په ګران هیواد افغانستان کې ماته خوړلې دا یو داسې حقیقت دی چې نه ورڅخه دوستان انکار کولای شي او نه هم دښمنان ، دا وخت امریکایان د ماتې وروستۍ شیبې شمیري او دا هم جوته او څرګنده خبره ده چې دوی به ان شاء الله تر ټاکلې مودې دمخه له افغانستان څخه ووځي دا وخت چې مونږ دا څو کربښې لیکو د امریکایانو په سلګونو پر وسلو او مهماتوی بار کانتینر د طورخم له لارې پاکستان ته او بیا د پاکستان له لارې بهر ته لیږدول شوی او لیږل کیږي.

ټولو به اوریدلي وي چې امریکایان د لوګر ، میدان وردګ ولایاتو څخه خپلې قواوې باسي دوی دښه نیت په وجه دا کار نه کوي بلکې د افغانستان په ګوټ ګوټ کې د دوی پر خلاف مسلح مقاومت ګړندی شوی، فدایي حملې او نور بیلابیل عملیات زیات شوي او د امریکایانو د مرګ ژوبلې شمیر زیات شوی ، فلهذا دوی مجبور دي چې مخکې تر مخکې خپل ځانونه عیار او لدغه هیواده به چټکتیا سره ووځي دا ماته هم عادي ماته نده بلکې ددې ماتې انګازې به په ټوله نړۍ کې خپریږي بلکې دا مهال خپرې شوي هم دي.



سره لدې چې د سپینې ماڼۍ واکدارانو ددې ماتې منلو ته زړه نه ښه کاوه او له هر ډول توطئې یې کار اخسته تر څو که وکولای شي چې خپله حتمي ماته په سیاسي او تبلیغاتي ګټاو بدله کړي پر طالب مجاهدینو یې ډول ډول فشارونه وارد کړل او حتی د افغانستان همسایه هیوادونه یې تشویق کړل چې عملاً د دغو پر خلاف سره یو شي خو الحمد الله چې همسایه هیوادونو دې فرمایش ته تر ډیره حده غوږ

کنبینښود ځکه هغوی پوهیدل چې په اوږد مهال ډول به له ستر تاوان سره مخ کیږی، ځکه امریکایانو د افغانستان له نیولو څخه یو ستر هدف دا هم وه چې دسیمي هیوادونه یو په بل پسي تضعیف او له مینځه یوسي ، امریکایان نه یوازې دا چې پدغه هدف کې کامیابه نشول بلکې د افغانستان د ننه یې هم هر څه له لاسه ورکړل بالاخره دهغه چا په وړاندی چې تر پرونه یې ورته تروریستان او ترهګرویل دهماغو سره یې دمخامخ خبرو کولو لیوالتیا وښودله او ډیری اسلامی هیوادونو او د افغانستان همسایه ملکونو ته یې پدې هکله رجوع وکړه تر څو له مجاهدینو سره مخامخ خبری وکړي ، هماغه وه چې په بیلا بیلو کچو دغه ډول خبري تر سره شوي او صلیبیانو خپله ماته ومنله که نه تاریخ ګواه دی چې یهودان کله هم په خپل عهد او پیمان ثابت قدم ندی پاته شوی ، بلکی قرآن کریم ځای پر ځای مونږ ددغه قوم دغدر او خیانت څخه خبروي ، خو ددې سره سره هم یهودانو مجبوراً خپله ماته تسلیم کړه او د خپلو عسکرو دوتلولپاره یې ۲۰۱۴ کال اول انتخاب کړ او فعلاً یې له افغانستان څخه تقریباً تر ( ۴۰۰۰۰ ) څلویښتو زرو مسلح پوځیان وتلي بالخصوص هغه عسکر چې په ۲۰۱۱ کال کې اوباما له عراق څخه افغانستان ته لیږدولی هغه وخت هم زمونږ نظر دا وه چې له عراق څخه افغانستان ته عسکر لیږل ددې په معنی دې چې هلته جنګیدونکو امریکایې عسکرو ته دمه ورکړي او دهغوی دفوري او یا لنډمهال وتلو لپاره لاره هواره کړي لکه څنګه مو چې پیشګویې کړې وه د الله جل جلاله په فضل هماغسي وه شول او دا دی ګورو چې په عراق کې د ۲۰۱۱ کال ماته دلته یوځل بیا تکراریږی او امریکایان کډی باروی ، دا ماته باید نه یوازې د افغان ملت په سطحه نه بلکې دنړۍ او آسیا په سطحه ولمانځل شی، د آسیا هیوادونه باید د افغان مجاهدینو دغه لویه قربانی او سربښندنه چې امریکایی او ناټو عسکریي د خپلو سرونو په ښندلو سره مات کړي هیره نکړي او خپل احساس راژوندی او له مجاهدینو سره دراتلونکي نوي اسلامی افغانستان په تعمیر او بیا رغونه کي بې له قید او شرطه مرسته وکړي ځکه افغانستان او بیا افغان مجاهدین هغه څوک ول او دی چې د آسیا لویی وچې څخه یې دوه سترې امپراطوری چې غوښتل یې هر څه خپلې لویی خیټې ته واچوي منع کړي بلکې د تاریخ کندي ته یې ولیږدولې بالخصوص اسیا افغانستان او اسلامی نړۍ یې د سري او توري امپراطوری له شره خلاص کړل چې له هیڅ عاقل انسان پټ ندي.

دناټو او امریکایی قواوو دماتی بل اساسی عامل دا دی چې دامریکا اودهغې دغلامانو ترمنځ شدید اختلاف راولاړ شوی چې بیلا بیل لاملونه لري.

یو لامل یې دا هم ښودل شوي چې په اصطلاح افغان مزدور دولت ونه توانید چې دملیاردونو ډالرو په مصرف سره هم وکولای شي علی الاقل دخپلو نورو مزدورو ملګرو سره په ګډه افغان ملت پدې قانع کړي چې ګویا امریکایان په د افغانستان د آبادۍ او په اصطلاح دترویزم دله مینځه وړلو لپاره راغلي ، بلکې افغان مسلمان ملت له اولې ورځې پدې پوهیده چې دالله جل جلاله او درسول صلی الله علیه وسلم دښمنان د افغان مسلمان ملت دوستان کیدلای نشی، ځکه یې له اولې ورځې دافغان مجاهدینو سره دحال او قال په ژبه همکاری کوله، خو دا چې ټول صلیبیان داحزابو (غزوة الاحزاب) چې ورته دخندق غزا هم وایي له ټولې

دنیا راغونډ شوي وو له څه ناڅه احتیاط څخه یې کار اخسته خو ددې سره سره یې ورځ تربلې له مجاهدینو سره مرستي او همکارۍ زیاتیدلي او دمقاومت ساحه ورو ورو په قوت سره خپریده ان تر دې چې د امریکایی اشغالګرانو چیغي ټولې دنیا واوریدی، ددې لپاره چې رسوا نشي په پټه یې دلته او هلته له مجاهدینو سره دخبرو اترو هڅي وکړي، مجاهدینو هم له یوې تاکتیکي او حکیمانه پالیسۍ څخه کار واخست او ویې ویل !

هیڅکله به دکابل له غلامي او بلواکي اداري سره خبري ونکړو، او دا یو حقیقت هم دی ځکه دکابل غلامې اداري دخپل ځان واک هم نه درلوده دا خو لاډیره غټه خبره وه چې دافغانستان په سطحه او د ټولۍ نړۍ څخه راغلیو صلیبیونو له طرفه دې دوکیل مدافع حیثیت هم ولري، هماغه ول چې بالاخره صلیبیانو ښکاره اعلان وکړه چې له مجاهدینو او دهغوي له سیاسي او عسکری قیادت سره خبرو ته حاضر یو، دا د مجاهدینو دوهمه لویه سوبه وه، پدې کې هم مجاهدینو په یوه غشي دوه هدفونه وویشتل او هغه دا چې د ایتلاف ځیني هیوادونه لکه بریطانیا او فرانسه یې تر زیات عسکری فشار لاندی ونیول چې بالاخره له هیواده ژر وتلوته اړ شول پدې کار سره مجاهدینو دصلیبي ایتلاف داوسپنیزی قلعې دوه مهم برجونه ونړول او لدغی قلاع (کلا) څخه دجحا کور جوړ شو چې دری دیوالونه او یوه مستحکمه دروازه یې درلوده خو بلخوا ته یې مکمل دیوال نړیدلی وو نو دا ډول کورته دروازه جوړول یا ورته قلف اچول د جحا احمقانه کار دی.



دا هم دمجاهدینو د حکیمانه تدبیر او تر ټولو دمخه دالله جل جلاله فضل وو چې وتوانیدل صلیبي لښکری په عسکری ، سیاسي، تبلیغاتی، دیپلوماتیکی او هر اړخیز ډول ماتي کړي او دیوه اسلامی افغانستان دجوړیدو لپاره لاره دتل لپاره هواره کړی ځکه ددغه او هغه صلیبي ضد جنګ موخه او هدف په افغانستان کې اسلامی نظام راوستل او افغانستان دتل لپاره دبلو سګرو له بلوسې ژغول ول ، دهماغي تلپاتي مبارکې ورځې د ژر راتلو په هیله .

# کنفرانس علماء قبل از انعقاد ناکام گردید

هیچ
مسلمان از این
اصل شرعی انکار نمی
کند که صلح خیر است ولی
باید متوجه بود که صلح با
کی ؟ و با کدام شروط؟ !

درین اواخر و چند
هفته میشود که رسانه های
بین المللی و محلی از
تدویر کنفرانس مشترک بین
علماء کرام پاکستان و
افغانستان سخن میگوید و
برای انعقاد این کنفرانس
مزمع کمپاین گسترده را براه
انداخته اند که سخن لب هر
مجلس خورد و بزرگ گردیده
است.

مردم ما که فطرتاً
علماء و دین را از عمق دل و
جان دوست دارند خیلی ها
امیدواری و ارزوهای سراب
مانند را از این کنفرانس
مجهول انتظار دارند، ولی
هنوز معلوم نیست که این پنج
صد تن به اصطلاح علماء
براستی هم علماء هستند یا
اشخاصی هستند که زیر نام
عالم دین برای استعمار سیاه
ایفاء وظیفه می نمایند، به
همین خاطر باید متوجه بود
که ساخت و ترکیب علیای

این
هیئت را
کی بدوش دارد؟ !

از سوی دیگر علماء
کرام پاکستان یکسره این کنفرانس
را تحریم نمودند و گفتند تا وقتیکه بر
مجاهدین اعتراف صورت نگیرد درین کنفرانس
شرکت نخواهند کرد، پس از این جا گفته میتوانیم
که کنفرانس بنام علماء از همین لحظه ناکام
شده است و هیچ نتیجه دلخواه و مطلوب
در بر نخواهند داشت، زیرا بخش مهم علماء کرام بالخصوص (علماء
دیوبند ) درآن شرکت نمی کنند، به لحاظ تاریخی هم بیشتر علماء کرام
شاگردان علماء دیوبند هستند پس اگر استاذ شرکت نکند اشتراک
شاگردان اصلاً اهمیت ندارد و از سوی دیگر گومان نمی رود که کنفرانس به
اصطلاح علمائ کابل تا وقتی دائر گردد تاحین که علماء پاکستان با آن
موافقت نکنند، و مسئله خطرناک این است که صلیبیان و همکاران و
مشاوران صلیب در جهان و افغانستان در حقیقت صلح نمی خواهند بلکی
کوشش میکنند که از نام پاک عالم استفاده سوء بکنند و بعضی از این
مردم را تطمیع بکنند و برضد مجاهدین استعمال کنند که باید علماء حق
متوجه این نقطه خطرناک و دسیسهٔ پنهان و زیر پردهٔ صلیب باشند،
صلیبیها هرگز نمی خواهند با مسلمانان و بالخصوص افغانها صلح کنند و
یا هم تطوعاً از افغانستان برایند بلکی میخواهند وقت مزید را کسب
نمایند و ازادی و تحریر کشور ما افغانستان را به تعویق بیاندازند، ولی
الحمد الله مجاهدین سربکف و فدایی ما متوجه این مؤامره جهانی اند و
همواره میکوشند که حمله های گوناگون چریکی، گوریلایی، استخباراتی
و فدایی را تشدید بخشند و پروگرام خطرناک اخیر صلیبیان را ناکام
نمایند، به همین خاطر صلیبیها و مزدوران آنان در افغانستان میخواهند که
از علماء کرام به حیث ورقه اخیر بازی شطرنج استفاده نمایند، متاسفانه

بعضی از کسانیکه در افغانستان بسر میبرند و در صف علماء جا گرفته اند متوجه این توطیه بزرگ یهودیان نیستند.

علماء پاکستان از قبل متوجه این سخن بودند که کنفرانس آتی مزمع بین علماء افغانستان وپاکستان جز توطیه استکبار جهانی چیزی دیگر نیست و نه هم از آن امید خیر خواهند کرد و برای شرکت درین کنفرانس شرط گذاشتند که باید درین کنفرانس مجاهدین مسلح سنگر (نمایند گلن امارت اسلامي افغانستان) شرکت داشته باشند تا موقف خود را به همه واضح سازند و این علماء شرط دیگری را هم گذاشته بودند که عبارت ازین است که باید از مجاهدین سنگر نشین بنام خوب یاداوری شوند، زیرا استعمار صلیبی و مزدوران منطقوی آنان میخواهند این زمره افراد صالح جامعه ما را به این نام و آن نام بدنام سازند تا راهی را برای شهوت رانی و حکمرانی مزدورا نشان هموارسازند پس میتوان گفت که علماء ازاد پاکستان درین موقف کاملاً بحق هستند و این موقف مردانه وار آنان باعث ناکامی توطیه جهانی علیه اسلام ومسلمانان شد و از آن باید تقدیر صورت گیرد، زیرا مزدوران صلیب در افغانستان و خارج از افغانستان میخواستند که از علماء کرام استفاده سوء سیاسی قرار گیرد و صف اسلامی را ازین طریق متزلزل سازند، ولی الحمد الله که علماء حقانی این توطیه را در نطفه خنثی نمودند و صلیبیها و اعوان آنان به منزل مقصود نرسیدند و ان شاء الله نخواهند رسید و بدون موافقه مجاهدین که همه قایدین عسکری و سیاسی آنان علماء اند ممکن نیست همچو کنفرانسهای فرمایشی و تحمیلی کامیاب شود.

و از سوی دیگر مجاهدین ما که اکثریت آنها علماء، طالبان دین، دانشمندان واستاذان هستند میتوانند هزارها عالم دین و دانشمند و مفکر را در یک روز جمع کنند و سیلی محکمی را بر فرق منافقین و صلیبیها حواله نمایند، در حالیکه حکومت مزدور کابل و هم امریکا اشغالگر نتوانسته است که علی الاقل دوصدوپنجاه عالم دین تصدیق شده را جمع کنند این هم علامات شکست این کنفرانس است که تا هنوز دایر نشده، طوریکه تذکر داده ایم کنفرانس بنام علماء بجز توطیه بیشتر چیزی بنظر نمی خورد، در خبر اخیر رسانه ها گفته شده که جمله قوتهای امریکا از افغانستان در نهایت سال جاری و در بدایت سال 2014 اخراج میگردد و 12000 دوازده هزار عساکر باقی می مانند پس دایرشدن این کنفرانس بجز اینکه مهر صحه را بر ماندن این لشکر دوازده هزاری صلیبی باشد چیزی دیگری نیست، مجاهدین ما هزگز قبول نخواهند کرد که یک عسکر صلیبی هم در افغانستان باقی بماند، و تا کشتار و فرار اخرین عسکر کفر صلیبی به جنگ و جهاد ادامه خواهند داد و امریکایان و مزدوران آنان به غایه و هدف شان ان شاء الله نخواهند رسید، پس صفوف خود را باید هرچه زودتر و بیشتر متحد سازیم و با یاری الله جل جلاله و من ثم ملت مسلمان افغان اخیرین ضربه را به فرق صلیبیان حواله نمائیم و حکومت صد درصد اسلامی حاکم بسازیم. ان شاء الله. (سعید)

# دسوله ساتو!!وحشت اوجنايت!

سيد سعيد

دګران هيوادله لراو برڅخه دسوله ساتو !! جګړه مارانوله خوادولسي افغانانو دوژنو ،نيونواوربړونوخبرونه نژدې هره ورځ خپريږي.هغه سوله ساتي !!ځواکونه چي په ادعايې پرمځکه څلور اينچه شی ويني اوحتی دپښو ښکالويې اوري ،خواوس دملکي خلګوداستوګنې ځايونه اودځارويوخړځايونه بمباروي ،دوسله وال اوبې وسلې ،ښځې اونر،لوي اوواړه فرق نشي کولای اويابې نه کوي.

دفبروري پر ۲۵مه درسينوسرخي په ميدان وردګ ولايت کي دامريکايې ځواکونوناوړه چلندنيولي وو ،ددغه ولايت دوالي مجيدخان له قوله چي امريکايې سپيشل فورس ځواکونه يې په ولايت کي ملکي خلګ بې موجبه ځوروي اوبنديانوي.عيني شاهدانوهم رسنيوته ويلي چي:«امريکايې پوځيان دشپې اوورځې دخلګوکورنه تلاشي کوي ،ځوانا ن او سپين ږيري وهي ،بنديانوي اوآن په شهادت رسوي ،همدغو ځواکونو يومحصل بندي کړی ؤ، چاته يې پته نه وه ،کورنۍ يې ډيره سرګردانه وه ،څوورځې وروسته يې مړی په يوه کنده کي په داسي حال کي وموندل شوچي سراوګوتي يې غوڅي شوي وې».ديرغلګرودياد شوي بربريت په غبرګون کي کرزي دخپلونه عملي شوواونه تطبيق کيدونکوفرمانونو ارشيف ته يوبل په دې ډول ورزيات کړ:«بهرني ځواکونه دي په دوواونيوکي دميدان وردګ ولايت څخه ووځي !».لکه څوورځې دمخه چي يې يوبل فرمان په کونړکي دنيواکګرواو اجيروعسکروله لوري دلسوتنوملکي هيوادوالو ترشهادت وروسته افغان عسکروته صادرکړچي:«نوربه دمخالفينوسره دجګړې پرمهال دبهرنيانوڅخه دهوايې ځواک غوښتنه نه کوئ !».خوترې وروسته يې په لنډوشپوکي دهمدغويرغلګروپه مرستندويه هوايې بريدونو کي په کندوزکي څلوراوارزګان کي درې تنه ولسي وګړي شهيدان شول.

څه موده مخکي هم په دغه ولايت کي له ولسي خلګوسره دامريکايې ځواکونودناوړه چلندپه اړه رسنيودعيني شاهدانوله قوله راپورونه خپاره کړل:دپژواک اوبي بي سي دراپورونوله مخي سوله ساتوځواکونوپه تېرودوومياشتوکي دميدان وردګوولايت په مرکز، جلريز،چک اونرخ ولسواليوکي ترسلو(۱۰۰)ډيرولسي وګړي نيولي ،ډبولي ،ژوبل کړي اوشهيدان کړي دي.ډاکترانوډيری ټپيانوته ځواب ورکړی اوروغتيايې حالت يې داندېښنې ورښوول شوی دی.خلګودوردګوولايتي چارواکواود رسنيوااستازوته ويلي چي امريکايې سپيشل فورس ځواکونه يې په لارو،

کروندو، باغونو اودوکانونو کي نیسي او بې موجبه یې ځوروي اودوهلو په زوریې اړباسي چې دطالبانو سره په اړیکو درلودو اعتراف وکړي.

دنرخ ولسوالۍ دیو اوسیدونکي په وینا چې:د سید محمد په نوم کلیوال یې چې دښوونځي زده کوونکی ؤ، امریکایانو نیولی اوبیا یې په وهلو کي شهید کړی دی .دغه رنګه دعزیرالرحمن په نوم یو بل تن چې موټریې چلاوه سپیشل فورس عسکرو نیولی او شهید کړی ؤ، چې مړی یې ځوورځي وروسته په یوه کرونده کي وموندل شو.کلیوالو ویل چې مرکز)میدان ښار)ته دسودا لپاره راځي ددغو عسکرله خوا په یو او بل نوم ځورول کیږي.یو بل سپین ږیري وویل چې:خارجي پوځیانوأن په مرکزکي دلالګي په نوم یودوکاندارد خپل دوکان مخ ته وویشت او شهید یې کړاو تېره میاشت یې دمیدان ښاراویا(۷۰)تنه دوکانداران ونیول چې وروسته یې ځیني خوشي اویوشمېریې لااوس هم بندیان دي.

دنرخ ولسوالۍ دکانزت یو اوسیدونکي (امیرمحمد)پژواک اژانس ته ویلي چې:په کلي کي مود قرانکریم ختم کاوه چې امریکایان راغلل درې تنه ولسي وګړي یې راخخه وایستل چې داطلاعاتو او فرهنګ ریاست تحویلدارقندي هم په کي وو، امریکایانودوی داسي وهلي ووچې قندي ته ډاکټرانو ځواب ورکړ.دجلریزولسوالۍ دزیولاتو یو استوګن وایې چې :زموږ په کلي کي امریکایانودوولسو کورونو دروازې ورماتي کړې او خلګ یې له کورونو ایستلي اووهلي دي. دچک ولسوالۍ یو مخور وویل چې :«امریکایې پوځیانو لومړی دکوردروازه په بمونوراوالوزوله اوبیا یې تلاشي پیل کړه، دوی (امریکایان)چې عملیات کوي دکلي مشران ونیسي اوپه یو کورکي یې بندیان کړي ترهغو بندیان وي چې دوی عملیات خلاصوي .ډیرو خلګو دبهرنیو ځواکونو دناوړه چلند له امله کلی کورپرې ایښی، کابل اونوروسیموته ګډه شوي دي».

د کابل چاپ محورورځپاڼي په حواله چې:شواهدلري امریکایې عسکرو په تېروپنځه ویشتوورځو کي دجلریزولسوالۍ په مربوطاتو کي پنځوس کورونه لوټلي او خلګ یې وهلي دي. دمیدان ښاریو سپین روبی (احمدالدین)وایې چې:پربهرنیو عسکرو چې کله حمله اویاچاودنه وشي، په حمله کونکو یې زورنه رسیږي، نو دملکي خلګو وهلو، بندي کولو او وژلو ته ملاوتړي.

دمیدان وردګ ولایتي چارواکي !!مني چې په سلهاوو کورنیو دبهرنیو پوځیانو دسخت چلند څخه شکایتونه ورته کړي دي، خو وایې چې :«ایساف قواوي اومرکزي حکومت یې په جریان کي اچولی اوس حکومت سیمي ته یو پلاوی استولی چې حالات له نژدې تعقیب کړي !!!!.

دروان(۲۰۱۳)ز، کال دجنوري پر ۱۲مه نیټه په شپنیو عملیاتو کي نیواکګرځواکونو دورګ ولایت سیدابادولسوالۍ دتنګي درې په حسن خېل سیمه کي پریو مسجد په بمباراو مخامخ ډزو کي ۱۸تنه ولسي وګړي وژلي اوپه لسهاوونورېې ژوبل کړي دي، په شهیدانو کي دامام اوبو حنیفه دلیسې استادمزمل، دوه زامن یې، سپین ږیري، ماشومان اودرې تنې ښځي هم شاملي دي، دعیني شاهدانو په وینا چې لومړی پرمسجد دوه واره بمبارو شو اوزیاته ملکي مرګ ژوبله پکي پیښه شوه اووروسته بیاد کورنیو او بهرنیو عسکرو په ډزو کي چې خلګ یې له کورونو راایستل اوویشتل ولسي تلفات رامنځته شول، دغه رازدوی وایې چې: د دغي پیښې ټول قربانیان ولسي وګړي دي.مخکي چې به دیرغلګرو په بمبار کي ملکي خلګو ته ډیره

دولس او حکومت ترمنځ شته واټن راکم کړو ، ولي همدا ډول کړني نورهم فاصله زياتوي او ستونزي زيږوي ، عيني شاهدانو رسينو ته ويلي سهارچي د پيښي ځای ته ورغلو ومو ليدل چي خلګ د نړيدلو کورونو ترخاورلاندي وواو دبدن غړي يې يوه خوا او بله خوپراته وو.

## غیر موثق راپورونه او دپراخ ځواک کارول :

د بشري حقونو د څارنړيوال سازمان د راپور له مخي ، امريکايې ځواکونو په افغانستان کي په تېرو څلورو کلونو کي په سلهاوو ماشومان وژلي دي. دوی له ماشومانو سره د امريکا په ناوړه چلند اند يښنه څرګنده کړې او يو لړ وړانديزونه يې ورته کړي چي د ماشومانو د حقونو د رعايت سپارښتنه پکي شوي ده. په ۲۰۱۴ز، کال کي د ملګرو ملتونو د سرمنشي بانکي مون ځانګړي استازي امنيت شوری ته په وړاند ي شوي راپور کي ويلي چي: په افغانستان کي د يرغلګرو ځواکونو او د کابل حکومت داردو ، پوليسو او..... په بريدونو کي د تير کال په پرتله دوه چنده زيات ماشومان وژل شوي دي. د ملګرو ملتونو د شمېرونو په اساس تېر (۲۰۱۱ز، ) کال کي د يرغلګرو په بريدونو کي يو سل او لس ماشومان وژل شوي او اته شپېته ژوبل شوي دي.

د څارنړيوال سازمان د ماشومانو دوژني د زياتوب دوه عمده لاملونه په ګوته کړي.

اول: د جګړي پر مهال د يرغلګرو ځواکونو د بې دريغه ځواک کارول.

دوهم: د بې اساسه او غير موثقو معلوماتو پر بنسټ عمليات ترسره کول

رښتيا هم يرغلګرځواکونه په افغانستان کي د مجاهدينو د يو کوچني ګروپ او يا حتی يو فرد پر ضد دومره لويه او پراخه قوه کاروي ، چي په ليدلو يې سړی فکر کوي د سلهاوو مجهزو جنګياليو سره د ډغري ميدان ته داخليږي. د غه رازيو بل شی چي د ملکي تلفاتو په تېره د ښځو او ماشومانو د زياتي مرګ ژوبلي سبب ګرځي هغه د نيواکګرو پوځيانو انتهايې ډار او ضعيف مورال دی ، «ډار+ ټيټ مورال +پياوړی ځواک = د ښځو او ماشومانو پراخه وژنه » ، ځکه دوی دوسله وال او بريدګر دښمن سره د مخامخيد وزړه نشي کولای ، ټول پام يې ځان ژغورني ته وي ، نو په دې صورت کي دوسله وال او غيروسله وال ، ښځي او ماشوم تميزنشي کولای ، هوايې ځواک ته د پروت په حالت کي کوردينات ورکوي ، هغوی هم بې له پلټني هرژوندی سړی په نښه کوي په زياتو عملياتو کي يې به موليدلي او اوريدلي وي چي حيوانان يو مخ ويشتل شوي وي.

بل دا چي پرخپلو جاسوسانو دومره باور کوي چي د عملياتو څخه مخکي او د بريدونو پر مهال د هيڅ راز پلټني اړتيا نه احساسوي ، د دوی له کړنو څخه

يا لړه مرګ ژوبله واوښته ، نورکسان به چي د بمبار څخه خلاص شوي وو هغوی به له مرګه بچ شول. خواوس چي کوم کسان له بمبار څخه بچ شوي وي يرغلګراو ګوډاګيان يې له کورونو راباسي او د کلي په منځ کي يې په ډله ييزه توګه له تيغه تيروي.

دغه رنګه د فبروري پر ۱۳مه يرغلګرو ځواکونو او افغان ملګرو پوځونويې د کونړ د شيګل ولسوالۍ د سولتن درې په چوګان کلي کي لس تنه ولسي وګړي شهيدان کړي دي ، په وژل شووکي پنځه تنه ماشومان ، څلور ښځي او يو سړی شامل دی او څلور کوچنيان ژوبل شوي هم دي. د کونړ والي وحيدي د ملکي خلګو وژنه تائيدوي خو يرغلګرو لاتراوسه په دې عملياتو کي د ملکي خلګو دوژني په هکله څه نه دي ويلي. د دغه ولايت دولايتي شوری رئيس حاجي مياحسن عادل د ښځو او ماشومانو دوژني په هکله وويل چي دوی دا ډول عمليات نه غواړي چي ولسي وګړي پکي زيانمن شي ، ده وويل چي موږ څخه کوو

جاسوس ته سزاور کړه او نه یې هم اعتماد پرې ختم شو.

یرغلګرځواکونه اصلا دخپلو مخالفینو هیڅ تعریف نه لري ،دیو نامعلوم دښمن سره جنګیږي ،دوی ته چې څنګه ویل شوي چې دښمن موبېرې ږیرې لري پګړۍ او پکول پر سر کوي ،بس نو همدادوی ددښمن سمبول دی چیرې چې ږیره وراو پګړیوال ویني له منځه وړل یې ویاړاو لویه بریاګڼي .په ځینو ولایتونو کې یې دهمدې ناپېژاندي دښمن په لټه ! اکې په زرهاوو جریبه اباده ځمکه ،باغونه ،میوه لرونکي وني او بڼونه له منځه وړي دي ،دبېلګې په توګه دغزني دسردې بند چې په زرهاووونې یې اره او په بمونو والوزولې اودکندهار په ژړۍ ،ارغنداب او پنجوایې ولسوالیو کې یې په بلدوزونو دباغونو او کورونو ورانول یادولای شو چې بسته بسته کلي یې وران کړل خو ددښمن په له منځه وړلو او یا پیدا کولو ونه توانیدل.

داسې ښکاري لکه دجګړې هیڅ ډول ستراتیژي او عملیاتي لید لوری چې نه لري ،فقط دجاسوسي مکالمو په استناد جګړییز پلانونه طرحه کوي او بیا یې هم دهمدې جاسوسانو دلارښوونو له مخې دعملي کولو هڅې کوي.

په تېروکلونوکې دیرغلګرو په زیاتروهوایې او ځمکنیو بریدونو کې د ناسمو معلوماتو پر بنسټ ملکي خلکو ته زیات مرګ ژوبله اوښتې ده ،دهراوت کې واده ،هسکه مېنه کې دواده ورا ،عزیزاباد کې ختم ،کندوز کې دتیلوټانکرو نوباندې راټول شوي ملکي وګړي ،هلمند کې دغیږو دودیزه مېله ، بالا بلوک ،کونړ، کندهار، نورستان ، لوګر ،میدان وردګ او....په ځلونو دولسي وګړو دغم اوښادۍ ناستې بمبارشوي دي . داندېښنې وړدا چې دملکي وګړو دپراخې مرګ ژوبلې څخه وروسته هم دبهرنیو ځواکونو په کړنلاره کې دبدلون څرک نه ترسترګو کیږي ،دولسي خلکو دزیاتوځاني او مالي زیانونو سره یې نه کوم

## دجګړې له نړیوالو مقرراتو څخه دیرغلګرو سرغړونې :

پرملکي استوګنځایونو دشپې اوورځې چاپې وهل ،دولسي وګړو ځورول او بندي کول او په بندکې یې تراوږدې مودې ساتل او شکنجه کول دجینوا دکنوانسیون ،دملګرو ملتو دبشري حقونو ټولنې او نورو مدني او بشري مؤسیسو دمقرراتو څرګند نقض دی.امریکا او جنګي متحدین یې په کال کې یو یا دوه ځله حتما پرچین ،ایران ،ازبکستان ،سعودي عربستان او.....دبشردحقونو څخه دسرغړونې تورونه لګوي ،خو خپله بیا دبشري او بین الدولي حقونو مراعت څه چې دانسانیت نوغې باسي ،ښځې ،کوچنیان او بوډاګان اسیرانوي او شهیدوي.پرهغو ځایونو چې دیو یا دوه مخالفینو داوسیدو شک پرې کوي د ډله ییزې وژنې وسلې استعمالوي ،حتی په ګڼ میشتو سیمو کې ممنوع الاستعمال (کیمیاوي ،بیلوژیکي او فاسپورس) مواد شیندي.

خوافسوس چې په اسلامي او غیراسلامي دنیاکې دومره څوک نشته چې ددې متمدنو وحشیانو لاس ونیسي.مظلوم افغان که هرڅومره چیغې اوفریادونه وکړي، بشرپاله نړۍ غوږهم نه پرې ګروي ،ځکه که څه وایې دقاتل بلاک سره یې سیاسي ،اقتصادي اړیکې ترینګلې کیږي نو دهمنوع ځورول ،زنداني کول او وژل خیردی ،خو چې خپلې ګټې یې زیانمنې نشي.

که خبره رالنډه شي او له خپل غولې یې راپیل کړو دکابل حکومت دي ووایې چې دامریکې سره ستراتیژیک تړون کومه ګټه وکړه ،نیواکګروشپنې عملیات ودرول ، دخلګوله بندي کولو اووژلو یې لاس

# دنوي ماشوم په غوږ کې داذان حکمت !

بهیقي اوابن سني له حضرت حسن بن علی رض اوهغه له رسول صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې فرمایي : من ولد له مولود فآذن في أذنه الیمني، و اقام في أذنه الیسري، لم تضره ام الصبیان.

یعنې څوک چې دنوي زیږیدلي ماشوم په ښي غوږ کې اذان اوپه چپ غوږ کې اقامت ( کلمات ) ووایي نو ام الصبیان چې ( دپیریانو خدمتګار دی اویادځینو په قول ام الصبیان یونوعه تکلیف اوتشنج دی چې غواړي طفل ته ضرر ورسوي ،خوداذان اواقامت په بر کت له هغوڅخه یې الله تعالی مصؤن ساتي .

حضرت ابورافع رض وایی هغه رسول صلی الله علیه وسلم ولیده چې دحضرت حسن بن علی رضی الله تعالی عنهم پس له تولدنه دهغه په غوږونو کې اذان وایه ، همدارنګه له ابن عباس رضی الله عنه روایت دی چې وایي په هغه ورځ چې حضرت حسن رض پیداشونورسول صلی الله علیه وسلم یې په ښي غوږ کې اذان اوپه چپ غوږ کې یې اقامت وکړ ، نوځکه ویلای شوچې دنوي زیږیدلي ماشوم په غوږونو کې داذان اواقامت متبر ک کلمات اوتکبیرونه ویل یوشرعي امر اودستوردی

## حکمت

ابن جوزي په خپل کتاب کې راوړي چې ، دنوي ماشوم په غوږونو کې بایدله بل هر غږ نه وړاندې داذان اواقامت کلمې په لوړ انداز زمزمه اوورسول شي ، ځکه اذان اواقامت دمقتدذات ( جل جلاله ) عظمت ، وحدانیت اولویې بیانوي اوداسلام په مقدس دین اودهغه په نازولي پیغمبر صلی الله علیه وسلم شاهدي ور کوي

ماشوم که څه هم داذان در ک نشي کولای خو کلمات یې په زړه باندې اثر غورځوي اوسکون ور کوي اوهغه شیطان چې دماشوم تولد ته انتظار باسي تر څوپرې خپل شیطاني وزرونه وغوړوي داذان اواقامت په کلیمو ورنه تښتي اوبیزاره کیږي

په اذان اواقامت کې بل حکمت دادی چې مخکې لدې شیطان دماشوم په غوږ کې شیطاني نیرنګ وچلوي هغه دیوه الله تعالی بندګي اوسپڅلي دین (اسلام) ته دعوتوي ،ځکه چې دماشوم فطرت له هرڅه نه ستره وي اوور اندې تردې چې شیطان دخیل انحراف ریښې یه کې وزغلوي اذان یې مخه نیسي. (م قلموال)

واخیست ،پرکورونوچاپې ختمې شوې او.....؟!،چې اوس په اصطلاح امنیتي ترون ته ځنې غوځوي. دوی هڅه کوي چې دلویې جرګې دلرغوني معززنامه څخه په سوء استفاده همدې قاتلانو ته قانوني برات اوحقوقي مصؤنیت ورکړي ،چې د لاډیري مودې لپاره دافغان ولس په برخلیک لوبې وکړي او دوژني ،ورانوني او ځوروني څخه موخوندواخلي

لوستونکي پوهیږي چې همدالومړی ځل نه دی،چې سوله ساتي !! ځواکونه دلته ښځې اوماشومان قتلوي ،ځکه په تېروکلونوکې یې هم بې شمېره ورته کړني ترسره کړې دي.نه پوهیږوچې ترڅوبه لانورهم همداآش اوکاسه وي .خوځواکمن څښتن جل جلاله ته دسوال لاسونه لپه کووچې نور ژرترژره له ګران ویاړلي هیوادافغانستان څخه داشغال ،فساد ،جهالت اوبې اتفاقۍ کرغیړن ټغرټول کړي ،اوپه بدل کې یې خپلواکي ،داسلامي نظام قیام ،یووالی اوسوکالي راپه برخه کړي.امین !

# پایگاه های نظامی دایمی آمریکا

# انزوای دایمی سیاسی و اقتصادی افغانستان

ع. ابو محمد

مهمترین دستاورد حضور دوازده ساله نزدیک به دوصد هزار نیروی نظامی خارجی در قالب ناتو و آیساف و حضور هزاران اینجو، کمپانی های امنیتی و سازمان های بین المللی در افغانستان؛ انزوای سیاسی و اقتصادی این کشور در منطقه بوده است. این بدین معنا نیست که ما برخی از دستاوردهای اندک و نمایشی دروغین افغانستان را در زمینه های سیاسی و اقتصادی نادیده گرفته و یا آنها را کمرنگ جلوه دهیم اما آنچه روشن است اینکه این دستاورد های ناچیز و دروغین هیچ تناسبی با حجم حضور نیروهای نظامی و غیر نظامی اشغالگران در این کشور نداشته و با تبلیغات رسانه ای غرب در خصوص بازسازی و بسط دموکراسی در افغانستان برابری نمی کند.

اکنون و پس از دوازده سال از عمر نظام جدید، دولت مزدور افغانستان همانند غریقی است که برای نجات خود به هر سنگ و چوبی دست می برد اما چاره ای برای خود نمی یابد. امنیت به عنوان اولیه ترین ضرورت شهروندان و نظام افغانستان کمیاب شده و وجود ندارد و ناامنی در تمام نقاط این کشور بشمول مرکز کابل پایتخت کشور گسترش یافته است. نظامیان آمریکایی و ناتو که به بهانه تأمین امنیت افغانستان، این کشور را اشغال کرده اند، تاکنون هیچ توفیقی در این زمینه نداشته و حتی در تأمین امنیت مهمترین مراکز نظامی و سیاسی خود ها از ترس حملات مجاهدین و فدایان امارت اسلامی نیز درمانده اند. از سوی دیگر با تمام بوغ و کرنایی که ناتو در خصوص تجهیز و آموزش نیروهای امنیتی اجیر افغان به راه انداخته و در حال حاضر پروسه انتقال مسئولیت های امنیتی از نیروهای خارجی به نیروهای مزدور افغان در جریان و رو به ختم است؛ کار چندانی در این راستا نیز صورت نگرفته و اردو و پولیس اجیر افغانستان به دلیل باختن مورال جنگی و کمبود امکانات وسایل نظامی در برابر نیروهای امارت اسلامی ناتوان ظاهر می شوند، چه رسد به مقابله با تهاجم نیروهای خارجی به این کشور.

دولت ناکام و ناتوان اجیر افغانستان که از تمام اقدامات نیروهای نظامی بیگانه در دوازده سال گذشته منفعتی نداشته است، اکنون نجات کشور را در امضای پیمان های استراتژیک با کشورهای

دور و نزدیک می بیند و در تلاش است تا با تکیه بر قدرت بازوی دیگران اقتدار مزدوری از دست شده خود را امرار حیات بدیهد .

از سوی دیگر انعقاد این پیمان ها نگرانی را در کشورهای همسایه ایجاد کرده و آنها انعقاد چنین پیمان هایی را در تضاد با منافع ملی خود می بینند. کشورهای پاکستان و ایران از جمله کشورهایی اند که گلوگاه اقتصادی اقتصاد وابسته به واردات افغانستان را در دست داشته و به صریح ترین لهجه از انعقاد چنین پیمان هایی به ویژه امضای پیمان استراتژیک میان افغانستان و آمریکا انتقاد کرده اند .

با توجه به اینکه افغانستان کشوری محاط به خشکی بوده و هیچ راهی جز از طریق کشورهای نامبرده به دریا ندارد، چگونه می تواند با استقرار چند پایگاه نظامی آمریکا در گوشه و کنار کشور، نیازهای اقتصادی خود را برآورده کند؟ شتاب دولت مزدور افغانستان به سوی امضای پیمان استراتژیک میان آمریکا و افغانستان در واقع شتاب آن به سوی انزوای اقتصادی و سیاسی در منطقه است، زیرا کشورهای همسایه ی افغانستان می توانند با در دست داشتن موقعیت سیاسی و اقتصادی برتر، کشور فقیر افغانستان را به



سرعت به سوی انزوای اقتصادی و سیاسی سوق دهند. به علاوه، این تنها ایران و پاکستان نیستند که از حضور پایگاه های دایمی نظامی آمریکا در افغانستان نگران اند، قدرت های بزرگ منطقه ای و جهانی ای مانند چین و روسیه نیز حضور پایگاه های نظامی آمریکا در افغانستان تحمل نکرده و به هر وسیله ای در برابر آن مقاومت خواهند کردند. اگر آمریکا از آن سوی دنیا حضور نیروهای تجاوزگر اتحاد جماهیر شوروی سابق را در افغانستان تحمل نکرد و برای منافع خود به کمک تسلیحاتی و مالی احزاب جهادی افغانستان آمد، آیا عاقلانه است که روسیه، چین، ایران، پاکستان و ...حضور ناتو و غرب را در یک قدمی خانه خود تحمل کنند؟؟؟

بنابراین ایجاد و استقرار پایگاه های دایمی نظامی آمریکا در افغانستان در واقع سوق دادن کشور به سوی یک انزوای سیاسی و اقتصادی دایمی در منطقه است و افغانستان بار دیگر قربانی رقابت های سیاسی قدرت های منطقوی و جهانی خواهد شد.



# مرکه

## دمرکې تعریف

مرکه که څه هم ډیر تعریفونه لري ، خولنډ اوخلاصه یې داده چې هغه عبارت ده دیوه اویاڅو تنو ترمنځ دسوال اوځواب نه چې موخه ترې نوروته باربطه پیغام انتقالول او رسول دي که هغه ( خبري وي اویاغیري خبري )

## دمرکې هدف

په عمومي ډول د مرکي اهداف عبارت دي له:

۱ - دیوې موضوع اوپیښې په اړوند دزیاتو معلوماتو حاصلول

۲- دیوې پیښې په اړه دعادي اوپیژندل شووشخصیتونونظر اودریځ معلومول

۳ –دعقایدواو افکارو انعکاس ، دمهمواو کلیدي شخصیتونو په اړه معلومات راټولول اونور ورته مسایل

## دمرکه کونکي ځانګړتیاوي

۱ - ځیرکتیا ، نکته چیني او چالاکي
۲ - دلیکوالی ذوق اواستعدادلرل
۳ - دجامعي له بیلابیلو طبقو سره علاقه
۴ - زغم اولویه حوصله
۵ - له خبریالی سره مینه
۶ - داخلاقي اصولو رعایت او تقوا
۷ - دتعصب او تکبر نه لرل ، بلکې ساده مزاجی
۸ - مناسبه حافظه لرل
۹ - له تبلیغاتي اوارتباطي وسایلوسره بلدوالی دمرکې مقدماتي مراحل
۱ – له هغه چاسره چې مرکه کیږي ژمنه اووخت اخیستل
۲ – دموضوع تعین اودسوالونو برابروالی
۳ - په سوالونو کې صراحت اونه ابهام
۴ - دپوښتنو ترتیب او نظم
۵ - دمرکوال دشخصیت په اړه معلومات لرل

## دمرکي ډولونه

### خبري مرکه

له خبري مرکي څخه موخه دهغوتازه او تکمیلي معلوماتو راټولول دي چې له مرکوال سره موجود وي اومخاطبینو اولوستونکوته جالب او داستفادي وړوي

دخبري مرکي ۳ ځانګړتیاوي

۱- دمرکي موضوع باید له جاري اوتازه پیښې او خبرسره ربط ولري

۲- مرکوال باید هغه څوک وي چې خبري یې لوستونکوته اهمیت ولري

۳- په مرکې کې باید هغه جزیات له مرکوال څخه ترلاسه شي چې په تیرو خبرونوکې نه وي راغلي له عیني شاهدانوسره مرکه

داهغه مرکه ده چې معمولا دخبري مرکوپه ترڅ کې ترسره کیږي اودپیښو اوحوادثو په اړه هغه څوک پوښتل کیږي چې په صحنه کې موجوداوپه سترګویې لیدلي

## ازاده مرکه

په دغه مرکه کې پوښتنې اوموضوعات مخکې له مخکې نه وي برابرشوي اونه هم دمرکي اړخ په یوه اومحدوده موضوع څرخي، بلکې پوښتنې دمرکوال له توضیحاتوپیداسرچینه اخلي

## رهبري مرکه

داهغه ده چې موضوعات له پخوا څخه

دپوښتونکي اوځوابوونکي ترمنځ مطرح شوي وي

## سپینه مرکه

په دې مرکه کې مرکوال اړدی چې دسپینو اوبې پولو پوښتنو په مقابل کې محدود جوابونه ووایي

## بنده مرکه

په دې مرکه کې دپوښتنو ځواب صرف (هو اویا نه) وي
مطبوعاتي کنفرانس

هرواکمن، ګوند او اورګان چې غواړي خپل خلک له روانو کړنو اوفعالیتونو څخه باخبروساتي اوله راتلونکوبرنامو او اقداماتو یې اګاه کړي نو خبریالان، ورځپاڼه لیکونکي او خبري رسنی راغواړي اودهغوی په وړاندې اوتوسط توضیحات اوموخې په ډاګه کوي
اختصاصي او غیرې اختصاصي مرکه

خاصه مرکه هغه ده چې تنها یوخبریال اویا یوه رسنی دمرکې په جریان کې حضورولري اوکه چیري لدې زیات وي نوبیاهغه عمومي مرکه ګرځي

## کتبي مرکه

دابیاهغه مرکه ده چې مرکه کونکی لاله وړاندې خپل مرکوال ته لیکلې پوښتنې اوموضوع لیږي اومرکوال هم په سړه سینه مرکه ځوابوي اوپه لیکلې بڼه یې ورته رالیږي

## دمطبوعاتي مرکې ځونکتې

مرکه کونکی باید تر ډیره حده ناپیلی اوبې طرفه وي، برخورداوظاهري چلند یې باید جدي خو په عین حال کې له درناوي ډک وي، هغه باید خپل مرکوال ته داباور وانتقال کړي چې ځوابونوته یې په دقت ګوري او اهمیت ورته لري، خوداخبره ضروري ده چې مرکیال به دپوښتنو په جریان خپل شخصي نظر اودریځ مخفي ساتي.

مرکه کونکی ته نه ښایي چې دمرکي په جریان کې دکوم ځواب او انکشاف په وړاندې تعجب اوحیرت وښیي اویا ځان ملامت وبولي، داسې هم نه چې مرکه کونکی صرف خپلې پوښتنې طرحه کړي اونوردخاموشی اوسکوت حالت غوره کړي، ځکه په دې سره کړېدونکی

فکر کوي چې دده خبري لکه چې بې اهمیته دي .

پوښتونکي اوځوابوونکي ته غوره ده چې دواړه هم ژبې اوهم فرهنگ وي ، ترڅو یودبل په خبرو ، لهجو او اقداروښه پوشي . مرکه کونکی باید دخپل مرکوال خبرو ته ځیر او دهغه خبري او مطالب ټکي په ټکي تشخیص اوبیا له هغو څخه نتیجه گیري اونوي پوښتني طرحه کړي

مرکه کونکی باید مناسب تخنیکي شرایط اوارامه فضادمرکې لپاره برابره کړي ، یعني په داسې ځای کې وي چې هلته سکون وي اوپراگنده اوازونه اوغږونه نه وي او بې ربطه افرادنه وي موجود. مرکه کونکی باید مرکوال دخپلې مرکې له اهدافو او دهغه دانتخاب له علت نه پوه اواگاه کړي

مصاحبه کونکی باید داسې حرکات ونه کاروي چې هغه دمرکوال دناراحتی اوستړیا سبب وگرځي اومرکه نیمگړې پاتې شي مرکیال باید مخکې لدې چې مرکه کونکي ترې رخصت واخلي دمرکې جریان ژرژرواوري ترڅو په ځوابونوکې کوم نقص نه وي تیرشوی ژباړه او ترتیب : عبید تنویر.

# سی نصیحت

1 - آنچه را گذشته است فراموش کن و بدانچه نرسیده است رنج و اندوه مبر .

2 - پیش از پاسخ دادن بیندیش .

3 - هیچکس را ریشخند مکن .

4 - نه به راست و نه به دروغ سوگند مخور .

5 - خود برای خود، همسر بر گزین .

6 - به بدی و دشمنی کسی خشنود مشو.

7 - تا اندازه ای که می توانی، از دارایی خود داد و دهش نما .

8 - کسی را فریب مده تا دردمند نشوی .

9 - از هر کس و هر چیز دلارام مباش .

10 - فرمان خوب ده تا بهره خوب یابی .

11 - بیگناه باش تا بیم نداشته باشی.

12 - سپاس دار باش تا سزاوار نیکی باشی .

13 - با مردم یگانه باش تا رازدار و نامدار شوی .

14 - راستگو باش تا پایداری داشته باشی .

15 - فروتن باش تا دوست بسیار داشته باشی .

16 - دوست بسیار داشته باش تا نامورَ باشی .

17 - نام آور باش تا زندگانی به نیکی گذرانی .

18 - دوستدار آیین باش تا پاک و راست گردی .

19 - برابر منش پاک درونی خود رفتار کن که بهشتی شوی .

20 - بخشنده و جوانمرد باش تا آسمانی باشی .

21 - روان خود را به خشم و کین آلوده مساز .

22 - هرگز ترشرو و بدخو مباش .

23 - در انجمن نزد مرد نادان منشین که تو را نادان ندانند .

24 - اگر خواهی از کسی دشنام نشنوی کسی را دشنام مده .

25 - دورو و سخن چین مباش و نزدیک دروغگو منشین .

26 - چالاک باش تا هوشیار باشی .

27 - پگاه خیز باش تا کار خود را به نیکی به انجام رسانی .

28 - اگرچه افسون مار خوب بدانی ولی دست به مار مزن تا تو را نگزد و نمیری.

29 - با هیچکس و هیچ آیینی پیمان شکنی مکن که به تو آسیب نرسد .

30 - مغرور و خودپسند مباش، زیرا انسان چون مشک پرباد است و اگر باد آن خالی شود چیزی باقی نمی ماند .

# فراه

## دیرغلګرو په وتو

# دمجاهدینو دنفوذ ساحه ډیره پراخه شوې

## دفراه ولایت جهادي مسؤل ملاامین الله صاحبزاده

مرکیال: ابو عابد

### فراه ولایت

فراه ولایت
دافغانستان په لویدیځ کې موقعیت لري لویدیځ ته یې ګاونډی هیواد ایران ،شمال ته یې هرات ولایت ،جنوب ته یې نیمروز ولایت او ختیځ ته یې دهلمند اوغور ولایتونو مربوطات پراته دي ددې ولایت اکثره سیمې ریګزارې او صحرایي دي اوډیرې کمې اولسي میشت سیمې لري له همدې امله خویې نفوس چې دوروستیو شمیرنو له مخې ۴۵۸,۵۰۰ تنه اټکل شوی دمساحت په نسبت چې نږدې ۴۸،۴۷۱ مربع کیلومتره ته رسیږي خورا کم ښودل کیږي ،فراه ولایت په مرکز سربیره چې دفراه ښارنومیږي ترلسوډیرې ولسوالۍ لري چې نومونه یې په لاندې ډول دي.

بالابلوک ،ګلستان ،پشت رود ،بکوا ،اناردره ،پرچمن ،خاک سفید ،قلعه کاه ،لاش وجوین ،شیب کوه اوفراه رود .

---

### دجهادي مسؤل پیژندپاڼه

ملا امین الله (صاحبزاده ) دکندهار ولایت دسپین بولدک دولسوالۍ اوسیدونکی دی دیني زدکړې یې له کوچنیوالي په خپل کلي اوجومات کې پیل کړې وې دابتدایي کتابونو له لوستلو وروسته دافغانستان بیلابیلو مدرسو دغه راز دپاکستان په بلوچستان او خیبرپښتونخوا ایالاتو کې بیلابیلو سیمو ته کوچیدلی دی ،دموقوف علیه یاوړې دورې ترلوستلو وروسته درسونه ترې پاته شوي او پاته ژوندیې په جهادي خدمت کې تیرکړی دی داسلامی امارت دواکمنۍ په مهال دتخار ،بادغیس ،بامیانو اوغوربند په جهادي جبهو کې پاته شوی او وخت ناوخت یې مهم مسؤلیتونه هم سرته رسولي په افغانستان له امریکایي برید وروسته یې وسلوال جهاد ته ادامه ورکړې اوپه تیره نهه کلنه موده کې دبولدک ولسوالۍ دعمومي مسؤل ،دښوراوک ولسوالۍ دعمومي مسؤل دغه راز دکندهار ولایت دعمومي مسؤل په توګه پاته شوی او مقدسه جهادي دنده یې اجراکړېده له تیروشو کلونو راهیسې دفراه ولایت عمومي جهادي مسؤلیت ورسپارل شوي چې تراوسه په هم دې دنده بوخت دی.

---

## پوښتنه

محترمه که له هرڅه وړاندې د فراه ولایت دوروستیو عمومي تحولاتو په اړه معلومات راکړئ ؟

## ځواب

په فراه ولایت کې په تیرکال او نږدې میاشتو کې د جهاد په ګټه خورا اساسي تحولات رامنځته شوي دي ، چې ورسره دمجاهدنیو وضعیت او روحیه خورا پیاوړې شوي او ددښمن مورال تر ټولو ضعیف حالت ته رسیدلی دی.

په ټوله کې یو مهم تحول له دې ولایت څخه دخارجي قواوو تیښته ده ، تاسو به خبر واست چې پخوا ددې ولایت په مرکز او تقریبا ټولو ولسوالیو کې امریکایي ، ایټالیایي او ډنمارکي یرغلګرو عسکرو پراخ شتون درلود ، په مختلفو سیمو کې یې خورا پخې قرارګاوې جوړې کړې وې ، او همیشه له مجاهدینو سره په جګړه بوخت وو.

خو دتیر کال په اوږدو کې خارجیان دفراه له مرکز او فراه رود ولسوالۍ پرته له نورو ټولو سیمو په مطلق ډول وتلي دي ، خپلې پخې قرارګاوې یې همداسې پریښې او یایې هم نړولې دي ، په فرا رود او مرکز کې هم یوازې یوه یوه قرارګاه ددوی پاتې ده چې په هیڅ صورت دا توان نلري چې مقاومت وکړي او ان شاءالله له پسرلنیو عملیاتو سره امید لرو چې دغه دوه پاتې قرارګاوې یې هم له منځه لاړې شي.

دامریکایانو په تیښته سره په فراه کې یو ستر تحول راغلی ، منطقې په بشپړ ډول ازادې شوي دي ، خاک سفید ، بالابلوک ، پشت رود ، فراه رود ، ګلستان ، بکوا او نورې ولسوالۍ له مراکزو پرته چې یوازې څو حکومتي ودانۍ یې دښمن په لاس کې دي نورې بشپړې ازادې دي ، مجاهدین هره خوا ازادانه تګ راتګ کولای شي ، او دیرغل هیڅ اثر نه دی پاتې.

## پوښتنه

تاسو په فراه کې دسیمو دازادۍ خبره وکړه که په دې برخه کې لږ تفصیلي معلومات راکړئ چې له کومو سیمو څومره خارجیان وتلي او اوس څومره ساحې فتح شوي دي ؟

## ځواب

په تیرو څو میاشتو کې له بکوا ولسوالۍ څخه دخارجیانو ۳ اډې تښتیدلي دي دغه راز داجیري اردو یوه قرارګاه تللې ، په بکوا کې اوس یوازې دولسوالۍ په مرکز کې دښمن شته ، د هرات کندهار لویه لار چې له دې ولسوالۍ تیریږي دمجاهدینو تر ځار لاندې ده مجاهدین که هر وخت وغواړي ددښمن په مخ یې تړلی شي او اوس ترې ددښمن قواوې په اطمینان نه شي تیریدلای.

د بالابلوک له ولسوالۍ څخه ۲ دخارجیانو او د ۲ دداخلي عسکرو سترې قرارګاوې تښتیدلي دي په دې ولسوالي کې هم یوازې په مرکز او دلویې لارې په سر څو پوستې پاتې دي نورې سیمې بشپړې ازادې دي.

له خاک سفید ، فرا رود او پشت رود ولسوالیو څخه هم مجموعا دخارجیانو ۴ قرارګاوې تښتیدلي دي ، ددښمن واک یوازې تر مراکزو محدود شوی ، یوازې په فرا رود کې فی الحال دامریکایانو یوه قرارګاه شتون لري ، ګلستان ولسوالي هم بشپړه له خارجیانو خالي شوې ده ، او داخلي عسکر په کې محاصره دي چې خوراکي مواد دهوا له لارې ورته رارسوي ، ان شاءالله زموږ امید دی چې په راتلونکي پسرلي کې به دا سیمې مکملې فتحه او له دښمن څخه پاکې شي.

دفراه ختيځه ولسوالي پرچمن چې پخوا دمحمد سليم په نامه يوه پخواني جګړه مار قومندان يې ولسوالووو او سخت ظلم يې کاوو ، چې حتی دا قومندان داسلامي امارت دتيري واکمنۍ په وخت کې هم نه وو تابع شوی او تل يې مقاومت ته دوام ورکاوو ، څه موده وړاندې دغه مضر قومندان دمجاهدينو له خوا ووژل شو په دې سره په پرچمن کې لوی تحول راغلی ، دمجاهدينو کارونه په کې علنا پيل شوي ، دفراه لويديځې ولسوالۍ لکه انار دره ، قلعه کاه او نورې چې له ايران سره په سرحد پرتې دي هلته له وخته امريکايانو شتون نه درلود او دمجاهدينو په وړاندې هلته کومو مهمو اهدافو شتون نه درلود ، نوځکه له هغې برخې موږ کوم تشويش نلرو .

## پوښتنه

دافغانستان په ځينو سيمو کې امريکايانو ددې لپاره قرارګاوې جوړې کړې وې ترڅو له خپل حضور نه په استفاده په سيمه کې خپل ملګري داربکيانو او محلي پوليسو په نامه پيدا کړي ، چې بيا ددوی دتګ نه وروسته ددوی رول ادا کړي ، په فراه کې خو به داسې نه وي شوي چې دامريکايانو له تيښتې وروسته يې ځای داخلي عسکرو يا اربکيانو نيولی وي ؟

## ځواب

نه د فراه په ټول ولايت کې يوازې دفراه دمرکز په شاوخوا کې يوڅه اربکيان دوی جوړ کړي دي ، نور په ولسواليو کې داسې کوم مشکل نشته ، دوی په يادو شويو ولسواليو کې په تيرو څوکلونو کې ډير کوښښونه وکړل ، چې اربکيان جوړ کړي ، او په کليو کې يې واچوي ، مګر دخلکو لخوا ددوی له دې پروګرام سره مخالفت وشو ، او هيچا هم همکاري ورسره ونه کړه ، دوی په دې برخه کې له ډير تشدد نه هم کار واخيست حتی دبالابلوک د شيوان په سيمه کې يې يو ځل تر ۷۰ تنو ډير سپين ږيري او قومي مشران له همدې امله بنديان کړل چې د دوی داربکي سازۍ له پروګرام سره يې مرسته نه کوله ، په نورو سيمو کې هم دوی خلک سخت وځورول خو دې ته يې اماده نه کړای شول چې ټوپک په لاس ورکړي او له مجاهدينو سره يې وجنګوي ، له همدې امله دوی مايوس شول ، په فراه کې تنها دبالابلوک په يوه سيمه کې دوی يوڅه اربکيان پيدا کړل ، خو دامريکايانو ترتګ وروسته هغه ټول له مجاهدينو سره ملګري شول ، په لسګونو ميله سپکه او درنه وسله يو ټانګ او څورينجر موټر يې هم جهادي صف ته وسپارل ، او له مخالفت څخه يې لاس واخيست دفراه په نورو ساحو کې دامريکايانو په تګ سره ددښمن دافرادو دتسليمۍ بهير تيز شوی دی ،



مجموعا ترسلو ډير کسان د دعوت او ارشاد دپروګرام له لارې په دې

وروستيو څو مياشتو کې په فراه کې ددښمن له صف څخه راوتلي او له مجاهدينو سره يوځای شوي دي.

په فراه کې چې امريکايان تښتيدلي نو سيمې دمجاهدينو لاس ته ورغلي او الحمدلله په ټول ولايت کې له مرکز پرته داربکيانو کوم مشکل نشته.

**پوښتنه**

په ۲۰۱۲ م کال کې په فرا کې جهادي کارونه څنګه وو او دراتلونکي لپاره څه اټکل کوئ؟

**ځواب**

په تير ۲۰۱۲ م کال کې په فراه ولايت کې جهادي عمليات ترغه ډير بريالي وو چې موږ يې تمه درلوده، دا کال دلويې بريا او فتحې کال وو ترديې پخوا په فراه کې اولس او مجاهدين له ډيرو ستونزو سره مخامخ وو ځکه دامريکايي او نورو يرغلګرو عمليات او حضور خورا زيات وو، مګر په ۲۰۱۲ م کال کې امريکايان په تيښته سر شول، له فراه څخه ددوی ډيرې قرارګاوې لاړې، بايد ووايم چې همدا اوس دفراه ولايت مجاهدين او عام خلک دتيرو پنځو کلونو په نسبت دهرکله په پرتله په ښه وضعيت کې دي، اکثره مناطق ازاد شوي دي او له ولس څخه داشغال سيوری پورته شوی، دچاپو، مظالمو، بمبارونو، تلاشيو او دخارجيانو دمظالمو دور په اکثره مناطقو کې پای ته رسيدلی، دمجاهدينو روحيات دهرکله په نسبت ډير عالي دي او سر له اوسه دراتلونکي کال لپاره په امادګيو بوخت دي، متقابلا دښمن په ترټولو بدوضعيت کې قرار لري، دجګړې او مقاومت روحيه يې بايللي او يوازې دځان په دفاع فکر کوي، ددښمن افراد يو په بل پسې تسليميږي، دښمن په په خپلو مراکزو کې محصور شوی دی، سره له دې چې زموږ دتيرکال عمليات هم بريالي وو ځکه ددښمن تلفات ډير وو او زموږ بيخي کم او په ټول کال کې موکوم دپاموړ تلفات نه درلودل، دراتلونکي په اړه هم الله تعالی ته اميد لرو چې راروان کال به دفتحو او برياوو کال وي، او دتيرکال غوندې به په اللهي نصرت سره داسې فتوحات دمجاهدينو نصيب شي چې ددوی ترهيلو لوړ وي ان شاءالله.

**پوښتنه**

تاسو وويل چې دفراه ولايت اکثره مناطق ازاد شوي دي نو په دې ازادو مناطقو کې ددښمن له تيښتې وروسته دحکومتي ادارو کوم جوړښت رامنځته شوی دی؟

**ځواب**

تاسو پوهيږئ چې اسلامي امارت يو بشپړ او په ټول پوره حکومتي نظام او جوړښت دی، چې دنظامي کميسيون او تشکيلاتو غوندې دقضاء، تعليم او تربيې، دعوت اوارشاد، نظارتي کميسيونونو او نور تشکيلات هم لري، په فراه کې هم په ټولو سيمو کې زموږ لوړ ياد شوي تشکيلات موجود دي.

په دې سربيره په اکثرو ساحو کې موږ دسيمې دخلکو په خوښه له قومي مشرانو او علماء کرامو متشکلې شوراګانې جوړې کړي دي، چې هم په سيميزه سطحه دمسائلو او لانجو پريکړې کوي او هم مجاهدينو ته ښې مشورې ورکوي او دګډ تفاهم له لارې ټولې چارې پرمخ وړي.

له ولس سره دهمدې نږدې تفاهم او اړيکو په برکت موږ توانيدلي يو چې خلکو ته دارام ژوند شرائط برابر کړو، فراه ولايت چې يو وخت داجيرحکومت دواک په مهال دافغانستان په سطحه دغلاوو، داړه ماريو،

اختطاف او نورو جرائمو سیمه بلل کیده ، اوس یې خلک دمجاهدینو په واکمنۍ کې په بشپړ امنیت کې ژوند کوي ، غله په مطلق ډول ورک شوي دي ، او په کومو سیمو کې که پیدا شوي ډیر زر دولس په همکارۍ دمجاهدینو لخوا نیول شوي او په خپله سزا رسیدلي دي.

همدا اوس یوازې دفراه ولایت مرکز او ورسره نښتي کلي هغه سیمي دي چې هره ورځ ورنه دغلاوو او جرائمو راپورونه ورکول کیږي ، په همدې سیمه کې اربکیان او پولیس واکمن دي چې داولس ژوند یې سخت تنګ کړی دی ، دغه راز دفراه دملي امنیت مشر دصمد خان په نوم یو پخوانی کمونیست دی چې زموږ دمعلوماتو له مخې د سرې تښتوونکو او غلو ځانګړې شبکه لري ، چې دهرات او فراه په مرکزي سیمو کې د تجارانو او دپیسه دارو خلکو زامن تښتوي او بیایې دپیسو په مقابل کې خوشي کوي ، خو ددوی فعالیت یوازې په هغو سیمو کې روان دی چې دحکومت تر واک لاندې دی دمجاهدینو په سیمه کې دوی دهیڅ راز غلا او اختطاف جرئت نه شي کولی .

### پوښتنه

څو میاشتې وړاندې داسې ویل کیدل چې امریکایانو دبالابلوک په ولسوالۍ کې دعامو خلکو کروندو او باغونو ته ډیر زیان رسولی که په دې اړه معلومات راکړئ ؟

### ځواب

بلې ، دبالابلوک ولسوالۍ دشیوان سیمه چې دلویې لارې له څنګ سره پرته ده دمجاهدینو دنفوذ یوه مهمه سیمه بلل کیږي ، په دې سیمه کې ددښمن کتارونه همیشه ترسختو بریدونو لاندې راځي او په بیا بیا دلته درانه تلفات ورته اوښتي دي ، امریکایان او داخلي ګوډاګیان یې چې دهرات کندهار لویه لار ورته داکمالاتو له نګاه حیاتي ارزښت لري ، په دې سیمه کې دمجاهدینو له بریدونو ډیر په تنګ شول ، دوی دلته په بیا بیا عملیات وکړل خو څه فایده یې ونکړه ، بالاخره دوی داسې یو ظالمانه پروګرام پیل کړ ، چې په دې سیمه کې د دسرک غاړو ته دخلکو ټول کورونه ، باغونه ، پټي او کروندې باید له منځه یوړل شي ، ترڅو په کې مجاهدین کمین ونه نیسي ، دهمدې لپاره یې د سږکال دفبرورۍ په میاشت کې دې منطقې ته لویه قوا راوسته چې بیلدوزر او نور غټ او واړه وسائل هم ورسره وو ، دشیوان په ګڼ میشته سیمه کې یې دلویو لویو سرکونو او جرونو دایستلو کار پیل کړ ، دخلکو ډیر باغونه ، کښتونه اود اوبو ویالې یې تخریب کړې ، دوی غوښتل دلته هم دکندهار د ژړۍ او پنجوایي غوندې دخپل امنیت لپاره عمومي تباهي رامنځته کړي ، خو وروسته دخلکو او مجاهدینو لخوا له دوی سره مقاومت شروع شو په دوی باندې څو پرلپسې بریالي بریدونه وشول تردې چې بیرته وتښتیدل او سنجول شوی پلان یې نیمګړی پاته شو .



## دجیداو مجاهد عالم مولوي فضل احمد سرخاوي (رح)

# ژوند او کارنامې !!

دسیمې جید دیني عالم اولوی مجاهد مرحوم مولوي فضل احمد ( سرخاوي ) چې دخپل ژوند قیمتي شیبې یې ددرس تدریس ، دیرغلګرو په خلاف په جهاد او اسلامي مبارزې او دمسلمانانو ترمنځ په اصلاحي خدمتونو ولګولې او په هرډګرکې خپل ولس او هیوادته ستر ې دیني ښیګڼې ولورولې ، باالاخره دعلم ، جهاد او محاسنو دغه روڼ ستوری هم په دې ورستیوکې له مداره پریوت او خپل روح یې ښنونکي او تواناښتن تعالی ته وسپاره ( اناالله وانا الیه راجعون )

**نسب او زوکړه** : اروانباد مولوي صاحب دفیض محمد ځوی دعبدالمحمد لمسی په ختﻪ احمدزی خانان خیل ، دلوګر ولایت دمحمداغې ولسوالی اړوند دسرخاب درې په کلي کې په ( ۱۴۱۳ ) لمریزکال کې دې فاني دنیاته سترګې وغوړولې.

**زدکړې** : مرحوم دلوګر ولایت دمحمداغې ولسوالی په غزني خیلو ، خواجه دادخیلو ،سري سنګ او مغل خیلوکې خپلې ړومبنی زدکړې وکړې ، منځنی زدکړې یې دهیوادله منل شوو اومشهورو عالمانو او استادانو هریو ( مولوي محمودنه په پادخواب شانه کې ، مولوي غلام رسول نه په شاه مزار ، دعمراخان کلا له ملاصاحب نه په خروار اومیرصاحب عبدالستار اغاځخه په مغل خیلوکې ترلاسه کړي ، دحدیثو مبارکه دوره یې دکابل ګذرګاه په غوثیه مدرسه کې له شیخ الحدیث مولانامحمدالدین څخه وکړه ، په ۱۳۴۷ لمریزکې فارغ اودفضیلت پګړی ورپه سرشوه.

**تدریس** : له فراغت ورسته یې ددیني علوموپه تدریس پیل وکړ دری کاله یې دلوکرد مرکزاړوند ( کلنګار ) دخواجه باباپه کلاکې ، دری کاله یې د زرغون ښار په نظامیه مدرسه کې ، دری کاله یې دپادخواب شانه په مرکزالمدارس کې اودری کاله یې دسرخاب دمزګین په کلي کې خورانامتو اوپه زړه پورې تدریس وکړ.

**جهاداو مبارزه** : کله چې د۱۳۵۷کال دثورپه ۷ نیټه کمونیستي انقلاب رامنځته شو ، نوموړي درسونه رخصت کړل اودمسلح جهاد دپیل کولولپاره دلوګر اړوندې سیمې دوبندي ته ولاړ ، دجهادړومبني وسایل یې دخلکو په مالي مرسته برابر اوپه عملي جهادیې پیل وکړ ، دهمدې کال په

پای کې ګاونډي هیوادپاکستان ته مهاجر شو، هلته دنجات ملي جهادي ګوند ورته په کال ۱۳۵۸ل کې سل میله سپکه وسله ورکړه چې دپاړاچنار په تري منګل کې یې په مجاهدینوویشله اوبیا یې دلوګر سرخاب ته ورسوله اوهلته یې دمجاهدینو پیاوړی مرکز پرې فعال اودجهادترپایه هغه ځای دبې شمیره مجاهدینو اوغازیانو خوندي اوپرجوشه ټاټوبی و.

مرحوم مولوي صاحب ددې ترڅنګ چې یوجهادي قومندان وواود سرولښکرواودهغوی دګوډاګیانوپه مقابل کې په ډیروجګړوکې مستقیمه برخه اخیسته ، ورسره یې دمجاهدینواصلاح اودهغوخپل منځې اختلافاتو له منځه وړلو ته هم زیات پام اړاواوپه دې برخه کې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې کولې چې ددا عیانوپه نامه دمصلحوعلمای کراموهغه ډله چې کوشش یې کاوه ترڅودجهادي رهبرانو اوګوندونوترمنځ وحدت رامنځته کړي مولوي صاحب یې برجسته غړی وو.

مرحوم مولوي صاحب کله چې دجهادمرحله پای ته ورسیده اوکمونیستي رژیم ړنګ شو بیرته یې دهجرت په دیارکې دپیښور اضاخیلوپه پنډغالي کې دتدریس ،لاړ ونیوه اوله خپل منځې اړودوړڅخه یې ځان په څنګ وساته .

یاده دې وي چې مرحوم مولوي صاحب دهغو علمای کرامو له جملې څخه وو چې داسلامي امارت په استحکام اواسلامي شریعت په نفاذکې یې کلیدي اومحوري رول ولوباوو، په ډیراخلاص یې ولس داسلامي امارت ملاتړ اومرستې ته رادعوتاوه ،په هغه سربیره یې داسلامي امارت قیادت اومشرانوته اصلاحي اورغنده مشورې ورکولې اوهم به یې دهغوی نیمګړتیاوي ورپه ګوته کولې ، اروانښامولوي صاحب داسلامي امارت په مهال په نوروبوختیاوو سربیره دکابل ، لوګر اومیدان وردګوولایتونو دمرافعې محکمې دریاست دندې هم سرته رسولې وي.

دهیواددغه جیداومخوردیني عالم دامریکایي یرغل په وړاندې داسلامي امارت ترڅنګ کلک ولاړ وو دمجاهدینو دفتوامرجع اوستردعاګوی وواولوی ارمان یې وو چې په خپلو سترګویوځل بیا په هیوادکې داسلامي نظام اوشریعت پلوشې ووینې چې په همدغې جذبې اوارزو د۱۳۹۱ل کال دجدي میاشتې په ۲۳ نیټه د ۷۷ کلونوپه عمردهجرت په خونه پیښورکې وفات ، جنازه یې دسوونوعلمای کرامو، طالبانو اوعامومسلمانانوپه ګډون دشیخ الحدیث مولوي عبدالطیف اخندزاده په امامت داضاخیلودپاچاصاحب په مدرسه کې ادا اوبیایې جسدمبارک خپل اصلي ټاټوبي لوګرته یوړول شواوپه خپله پلرنۍ ادیره کې خاوروته وسپارل شو، روح یې ښاد، جنت الفردوس سې نصیب اوکارنامې یې تل پاتې اوسه . منبع ( دلوګرنومیالي عالمان کتاب . اودمرحوم ځوی مولوي عبدالحکیم سالک )

# خبر او غبرګون

خبیر احمد

**خبر** کابل له واشنګټن څخه د امنیتي خوندیتوب ضمانت غوښتی

**غبرګون** پهٔ تشه خولهٔ دې شوم غلطه . نامرده یاره پهٔ میدان دې پرېښودمه

**خبر** وسله وال دې روغتیایي مرکزونو ته په زور نه ننوځي "

**غبرګون .** انسان باید احمق اوغوایه ته لار پرېږدي (متل)

**خبر** کرزي د پاکستان د علماوو شورا څرګندوني وغندلې

**غبرګون .** داځکه چې پاکستاني عالمانو دظالم اوجابر مرسته ونکړه اوپه افغانستان کې یې روان بهرني اشغال ته مشروعیت ورنکړ !؟

**خبر** له وردګو ولایت څخه د ځانګړو امریکایي ځواکونو د وتلو امر

**غبرګون** . وایي په یوه زمانه کې یوه پاچا دوه میدانونه جوړکړي وو چې یوه ته یې سپین رنګ ورکړی وو اوبل ته یې سور رنګ ، پاچا امروکړ څوک چې له ښځ و ډاریږي هغه دې په سره میدان کې ودریږي اوڅوک چې نه ډاریږي هغه دې په سپین میدان کې ، له امرسره سم له یوکس نه پرته نورټول خلک په سره میدان کې ودریدل خویوکس تنهاپه سپین میدان کې ودرید ، پاچاورته وویل چې عجیبه ده داټول خلک له ښځوډاریږي اوپه سره میدان کې ودریدل ستاکوم خصوصیت اوکمال دی چې ته له ښځې نه ډاریږي ، هغه کس ورته وویل چې پاچاسلامت زه هم له ښځې ډاریږم ، پاچاورته وویل چې بیاولې په سره میدان کې ونه دریدې ، کس ورته وویل چې صاحبه !دامې ښځې راته ویلې ووچې په سپین میدان کې به دریږې !!!

**خبر** له افغانستان سره مرسته سوي پیسې دباندې انتقال سوي

**غبرګون .** کله چې رشوت په دروازه راننوځي نو عدالت په کړکۍ تښتي.( متل )

**خبر** آیساف په روزګان کې د کوچنیانو د وژلو په اړه معذرت وغوښت

**غبرګون** . اودکابل منتخب اودیمکرات امریکایی دولت هم په ډېرمعذرت قبول کړ !!

**خبر** د کجکي بند ته د ځانګړو شوو پیسو ډېره برخه د بهرنیانو په معاشونو لګول شوې

**غبرګون .** پۀ اخرت بۀ حسابېږي . فرنګ دظلم نه ګېډې ترلې دینه

**خبر** د پروان د پوهنې ریاست ۵،۷ میلیونه افغانۍ غلو یوړې

**غبرګون .** یانې والي ، امنیه قومندان ، اودمعارف رئیس خودغلا جوال نه وورسره نیولی؟

**خبر** کابل : ایراني محاکم دې پر افغانانو داعدم حکمونه وځنډوي"

**غبرګون .** چې دولسمشر ! مرستیال استاد ( خلیلی ) هم همدغه دریځ دی که ............

**خبر** ترکیه د افغانستان د کانونو په استخراج کې مرسته کوي

**غبرګون .** مرسته ، که شوکه !!!

**خبر** اوباما د بودیجې د کمښتونو فرمان لاسلیک کړ

**غبرګون .** د هندستان پېرنګې ژاړي، که ژیړ ایوب پر دنیاوو ، کونډې به شونه !

**خبر** د غصب شویو ځمکو د راګرځولو هڅې به نتیجه ور کړي؟

**غبرګون .** هو ! که خدای حاکمه اوتوره مافیا دافغانانو له سره ورکه کړه !

**خبر** د کابل پر ځای دعالمانو کنفرانس په ریاض یا قاهره کې جوړېږي

**غبرګون .** هلته یې هم مه یې بوله ، ځکه هرڅوک پوهیږي چې دغه کنفرانس دجګړې اورته نورپوکی ورکوي !!

**خبر** ناټو د افغانانو د ډاډ لپاره څه کوي؟

**غبرګون .** هوایي بمبار ،چاپې ، دکانونواومعدنوچوراوتالان ، داسلامي اوافغاني اقدارو سپکاوی ، دعیسویت تبلیغ ، دافغانستان تجزیه او.............

**خبر** امریکا به له وتوو راندې افغان ځواکونو ته زغره وال ټانکونه واخلي

**غبرګون** . چې ابویوړم ابویوړم - چې بې ګودره ګډیدم اوبوبه وړمه

## غاړه له باربار تازه کولو سره اواز متاثره کوي

طبي ماهرینو خبرداری ورکړی چې دغاړې له مکررډول تازه کولو سره نه داچې اواز سمون نه پیدا کوي بلکې ورسره متاثره کیږي.

په شکاګو کې نوي تحقیق مخې وایي چې هغه څوک چې دعادت له مخې دغاړې اومری په باربار تازه کولو مبتلاوي دوی نه داچې خپل اوازته په دغه کارسره ښکلااوسمون نشي ورکولای ، بلکې نوریې خرابوي اوان تردديچې که دروغې مرى والا تن دغه عادت تکرارکړي کیدای شي له دریو میاشتو ورسته دهغوی په اوازکې هم منفي اثرات ولیدل شي اوغږیې ټيټ اویا جړوګرځي

# زیاد شدن کودکان معتاد

ابو محمد

# ثمری دیگری خدمت! اشغالگران در افغانستان

در تازه تر ین گزارش منتشره از اوضاع افغانستان پس از اشغال به کودکان ی اشاره شده که شاید تنها 3 سال از عمرشان م ی گذرد اما درچه ره نوجوانان، جوانان و بزرگسالان مهر "معتاد به مواد مخدر" را بر پیشانی دارند، کودکان ی که تعدادشان به شدت در حال افزایش است.

متن:

خبرگزار ی فرانسه در بررس ی وضع یت کودکان معتاد در افغانستان به نتا یج وحشتناک ی رس یده است : تعداد روز افزون کودکان معتاد در افغانستان حاکی از افزایش میزان اعتیاد در میان این قشر از جامعه افغانستان است، این افزایش را زیاد شدن مراکز ترک اعتیاد برای کودکان می توان به راحتی فهمید .

افغانستان کشور ی است که در آن **90** درصد مواد افیونی مورد استفاده در تهیه هروئین تولید می شود .

البته کارشناسان بر این عقیده هستند که شمار معلوم کننده برای تعداد کودکان معتاد وجود ندارد ، کودکانی که سن شان از **3** تا **12** سال است.

یکی از کمک کننده گان در یکی از مراکز ترک اعتیاد افغانستان م ی گوید : کودکانی که به دام اعتیاد گرفتار شده اند خفه و غمگین هستند ، فعالیت زیاد ی نداشته و به بهبودی خود نیز توجه ی ندارند .

این مرکز که توسط یک موسسه خیریه افغان به نام "ودن" تاسیس شده از سوی سازمان ملل حمایت مالی م ی شود و در آن **25** کودک و **35** زن چانس و سند رهایی از دام اعتیاد را دارند .

یکی از این کودکان که دختر ی **10** ساله است اخیرا در یکی از مراکز ترک اعتیاد موفق شد به زندگی سالم بازگردد . وی در گفت وگو با خبرنگار خبرگزار ی فرانسه گفت: از زمانی که یک کودک بودم همیشه گولی های خواب آور مصرف می کردم. من همیش خواب آلود بودم و سر دردی داشتم و نمی توانستم در کلاس به درس ها گوش دهم و دوستانم دایم به من می خندیدند اما هم اکنون بهتر شده ام اما به صورت کامل تداوی نشده ام.

رئیس مرکز ترک اعتیاد ودن واقع در ولایت ننگرهار در شرق افغانستان می گوید تابلیت و دوا های خواب آور را می توان با شیر مخلوط کرد و به کودکان داد اما بسیاری از کودکان به واسطه غذاهایی که حاوی مواد افیونی هستند معتاد م ی شوند . از آنجا یی که مواد افیونی به آسانی در افغانستان قابل دسترس هستند و برخ ی گمان م ی کنند که این مواد اعتیاد آور نیستند و آنها را به عنوان مسکن و التیام بخش استفاده می کنند.

یکی دیگری از دفتر مبارزه با مواد مخدر و وقوع جرم سازمان ملل م ی گوی د: اکثر کودکان در افغانستان در نتیجه تنفس مواد افیونی که پدران شان در منزل مصرف م ی کنند معتاد م ی شوند و برخ ی دیگر نیز به صورت عمد ی توسط والد ین شان معتاد م ی شوند . به طور مثال ، مادران در زمانی که در حال شیرزنی ی ا برداشت خشخاش از مزارع هستند برای آرام کردن فرزندان شان از مواد مخدر استفاده می کنند.

این مقام مسئول سازمان ملل گفت: علت اصلی اعتیاد کودکان در افغانستان فقر است. بسیاری از خانواده ها اطلاع ی درباره تاثیرات جانبی مواد مخدر ندارند و نمی دانند که اگر این مواد را به خورد سالان و کودکان شان بدهند آنها را می کشند.

براساس جدیدترین نظرسنج ی وزارت خارجه آمریکا در خصوص استفاده از مواد مخدر در افغانستان مشخص شد که تعداد مصرف کنندگان بزرگسالا ن مواد مخدر 3 / 1 میلیون تن و تعداد کودکان معتاد حدود 300 هزار تن ه ستند.

همچنین براساس گزارش دفتر مبارزه با مواد مخدر و وقوع جرم سازمان ملل مشخص شد که مصرف کنندگان مواد مخدر در افغانستان به 53 درصد از سال 2005 تا 2010 افزایش یافته است.

مقام های سازمان ملل همچنین اعلام کردند که تنها 90 مرکز ترک اعتیاد در سراسر افغانستان وجود دارد که به درمان 16 هزار معتاد م ی پردازد. این رقم از سال 2009، 40 درصد افزایش یافته است و یک سوم معتادان این مراکز نیز کودکان و زنان هستند. علاوه بر این 60 درصد جمعیت افغان زیر 25 سال و 52 درصد این افراد نیز زیر 18 سال هستند.

دفتر مبارزه با مصرف مواد مخدر و وقوع جرم سازمان ملل همچنین اعلام کرد: درصورتی که ما این معتادان را درمان نکنیم آنها را فراموش کرده ایم. کودکان آینده افغانستان هستند اگر آنها مواد مخدر مصرف کنند برا ی کشور مثمر ثمر نخواهند بود ند.

**له حضرت عبدالله مبارک رح څخه وپوښتل شول چې کوم صفت دانسان لپاره ډیر غوره او ګټور دی، هغه وفرمایل: کامل عقل، بیادې ترې وپوښتل شول که کامل عقل نه وي؟ وې فرمایل: ښه دوست، اومهربانه ورور ګلوي، پوښتنه وشوه چې که هغه نوي، وې فرمایل: سکوت، پوښتنه وشوه که سکوت نه وي نوبیا، ویې فرمایل که هغه نه وي نوبیا انسان ځان کنترول کړي اوډیرې خبري دې نکوي، وپوښتل شول که هغسې ونشي نوبیا، حضرت عبدالله مبارک وفرمایل که دغه ښیګڼې اوخصلتونه یوهم په چاکې نه وي نوبیامرګ ورته بهتره دې اوژر دې ومري**

# جهاد در جهاد

سعیدی

امامت ورهبریت جهاد انتهایی خطیر وحاد ترین موضوع در روندتشکل وساختار بر نامه های جهادی میباشد .اجتماع ویا فردی در صدد اینسجام،نظم ونسق امورات جهادی عرض اندام مینماید علاوه از قابلیت های ذاتی که عبارت از تقوا،عدل وانصاف است باید صلاحیت جهاد واجتهاد را نیز دارا باشد .البته این دو کلمه باعتبار تعداد حروف و تلفظ بسیط اما بنسبت معانی ومفاهیم بس عریض ومشتمل تفاصیل ذیل میباشد در اصل مقصد نهایی ونهایت غایه وغرض فرد مجاهد حصول رضا وخوشنودی خداوند متعال، تسلیم وانقیاددر برابر بادشاهت اوتعالی ولبیک گفتن در مقابل احکام وار شادات الهی میباشد بخاطر استحصال همین مقصد علیا بیک جهاد طویل وعریض ضرورت است که در قدم اول باید دارای عقیدۀ سالم باشد چونکه عقیده اساس ،زیر بنا ومعیار مقبولیت هر اعمال پنداشته میشود دوم تربیت که قابلیت های ذاتی را در صفحۀ عمل بر ملا میسازد در حصول این صفت باید دریک مکتب ویا کانون جهادی منسلک گردیده در زیر نظر وپرورش مربی سالم ،ورزیده و مشفق تربیت یافته در مصدر خدمت جهاد تبارز نماید سوم

اخلاق حمیده وخصال مرضیه که دربافت وساختار امور جهادی اعم ازسیاست ،اطاعت،وحدت وبسیج نمودن کار های اداری نقش مهمی را ایفا مینماید چنانچه خداوند بزرگ خصال دلنشین سردار مجاهدین رابا این عنوان تعبیر مینماید {ولو کنت فظا غلیظ القلب لانفضو من حولک} یعنی طلاقت وبشاشت روی آنحضرت {ص} وشفقت ومهربانیش نسبت بصحابه سبب گردید که اصحاب پیامبر خدادر رکابش تجمع نموده همۀ تار وپود خویش را در اطاعت الله ورسولش قرار دادند اگر بالفرض برعکس تندخو وقساوت قلب میبودند انتشار وبیرغبتی دربین صحابه {رض} بوجود میآمد ومسیری را که جناب دراشاعت آن موظف بودند باین پیمانه بتکمیل نمی رسید صفات که تذکر یافت اتصاف باآن وابسته است بدست وپنجه نرم کردن وربودن قبایح ورزایل که برای همیش حریف ورقیب در برابر اصول متذکره میباشد وآن عبارت است اغراض وخواهشات که یکی نفسی میباشد دیگری آفاقی{داخلی وخارجی}فرد ذمه دار اگر اززنجیر این هیولای وحشت ناک رهانگردد واین مادۀ مهلک را از صحنۀ هستیش پاک نسازد محلی وجایی برای اوصاف فوق که فقرۀ اصلی جهاد را تشکیل میدهد پیدا نکرده اگر مجاهد است فقط درعنوان اما از حقیقت آن بمراحل بدور مانده ودر قالب عاری از معنی خود را بازی میدهد

وقتی مجاهد خودرا از اوصاف مذمومۀ نفسانی تخلیه نمود وباوصاف ممدوحه متحلی ومزین ساخت فکری و توجهی بسمت وجهت ماحول واجتماعی که در آن زیست وزندگی مینماید داشته باشد وجهت گسترش وتنفیذ احکام الهی بربنی نوع خود جدوجهد نموده وشیوۀ شفقت ،لطف ، تحمل گرایی وخیر خواهی راعادت نموده وذیل طبیعت خود بگرداند چونکه بسا اوقات آلودگی ماحول واطرافیان مانعی از اصلاحات نفس وطاعت انفرادی خواهد گردید لذادر قلع وقمع ناساز گاری های قلمرو کاریش کسالت نورزیده واین اصل را جزء بدنۀ دستورش قرار بدهد ودیگر اینکه شخص مجاهد مسیری را که انتخاب نموده بصیرت وبینایی کامل داشته باشد وفرهنگ و اهداف که بخاطر آن جان عزیز خودرا در بدلۀ آن معامله مینماید امتیاز کرده بتواند و کفر وجاهلیت که جهت زدودن آن کمر همت رابسته از آن واقفیت تام داشته باشد تانباشد مصداق این کلمه قرار بگیرد {مجاهد بی فرهنگ جنگجوی بی هدف} ودیگر اینکه درلابلای جهاد وقتال طور

## حضرت مالک بن دینار ﷺ

وايي چې حضرت مالک بن دينار په کشتي کې سفر کاوه کله چې کشتيبان له مسافروځخه کرايه ( يودينار ) ټولوي ، حضرت چې ځانته متوجه کيږي نوهيڅ هم په جيب ياخورجين کې نلري ، کشتيبان ور سره سخته رويه کوي اوور ته وايي چې که ته يودينار رانکړې نوبحر ته دې غورځوم ، په دې وخت کې يولوی ماهي ( کب ) له بحرنه خوله راپور ته اويودينارېې د کشتی منځته راوغورځاوه ، کشتيوان چې دغه حالت وليدپوه شوچې سړی دخدای ولی اومقرب بنده ده نوپه زاريواومنتوبې شروع وکړه اوله هغه يې بښنه وغوښته ، ويل کيږي چې لدغې پيښې ورسته حضرت مالک په بن دينار مشهوروګرځيد.

نقل شوی چې حضرت مالک بن ديناريويهودي همسايه درلود يهودي به هره ورځ دخپل کور د ګنده ابولوری دحضرت مالک بن دينارپه کورورېراوه ، حضرت به پر ته لدې چې کوم عکس العمل وښي په پټه خوله به يې ګنده ابو ته ته لار کنله ، يوورځ يهودي ور ته وويل چې زه تاته تعجب يم چې زه ستاپه مقابل کې نارواکوم اودخپل کورناولې اوبه ستاپرخوادرپريږدم خو ته هيڅ هم نه راو ته وايی اوصبر کوي ددې وجه څه ده ، حضرت مالک ور ته په ځواب کې وويل چې زمادصبر لويه وجه اودليل دالله تعالى دغه مبارک فرمان دی چې په قرانکريم کې فرمايي . والکاظمين الغيظ» يعني خدای تعالى له هغه بنده څخه راضی کيږي چې خپله غوصه وخوري اودهغه همسايه په مقابل کې چې لده سره زياتی اوناروا کوي صبر اوزغم کوي ، يهودي چې کله دمالک بن دينار دغه ديني اوله اعجازه ډکي قراني ملغلرې واوريدې سخت تراغيزلاندې راغی اوکلمه توحيدېې وويله . ( ابن خلکان )

حتمی چالشها يست که بايد بآن توجه صورت گيرد ونشيب وفرازيست که قافلۀ مجاهدين بايد آن راطی نمايد بناُجهت حل وامحای آن از هر گونه تدابير ومساعی که در عالم اسباب وجود دارد استفاده نموده بعداًبه الله متعال توکل نمايد علامه ابن القيم {ح} توکل رااينگونه تعريف وتشريح مينمايد {رفض الاسباب عن القلب لاعن القالب} يعنی متوکل تاثير اسباب را در اعتقاد سلب اما درعالم خارج از اسباب استفادۀ درست نمايد چنانچه الله {ج} در کلام آسمانی ارشاد مينمايد {واعدولهم ماستطعتم من قوة ومن رباط الخيل ترهبون به عدوالله وعدوکم الآيه} يعنی آمادگی وتياری بگيريد بخاطر دفع دشمن از آنچه که در قدرت تان هست از جمۀ مقدورات مسلمانان قوت است وديگری وسايل نقليه ميباشد قوت راقايد المجاهدين رسول الله {ص} تفسير نموده ميفرمايد{ الاان القوة الرمی} آگاه باشيد قوتيکه مجاهدين بآن مامور هستند عبارت از مهارت در فنون حربی وصلاحيت های اختراعی که مشتمل تهيۀ ابزار وآلات جنگی بر وفق مقتضی شرايط وقت وقابليت در استعمال آن ميباشد باين اساس لشکر اسلام ميتواند در قلب دشمنان خداودشمنان خود بيم وهراس راالقانموده تاب وطاقت شانرا سلب می نمايد ودراين وقت فرصت آنست که جوهريت اسلام برملا گرديده قيادت بشر رااز آن خود ميکند . بعداز طی نمودن اين مراحل پادر عرصۀ جهاد گذاشت البته مفهوم جهاد بخود اقسام مختلف دارد يکی آن در قالب قتال ميباشد که درشرايط خاص جايگاه مهم ومقام افضليت رابر ساير اقسام احتوانموده امت مسلمه نسبت بآن مکلف پنداشته ميشود وغايه ومقصد آن اينست که در برابر دين مقدس اسلام کدام حريفی وطاقتی پادرازی ،سلطه جويی ، حرمت شکنی کرده نتواند تااينکه حاکميت دين اسلام در فراز دنيا قايم گرديده وزمام قيادت بشر رادر ابعاد مختلف در دسترس خود قرار ميدهد وبرای مسلمان درس سروری، جهانبانی وآزادگی را ياد ميدهد واز دربانی وغلامی اجانب وبيگانگان رهانموده مسند حريت رابارمغان مياورد ودر مسند دفاتر دستورات اسلامی جامۀتنفيذ راميپوشاند و عموم بشر از لمعات وفروغ آن مستفيد ميگردد معاندين آن از شوکت و صيطرۀآن مضمحل، مقهور وذليل گرديده در تحت آيت {قل موتو بغيظکم} در منجلاب هلاکت ابدی فرومی روند.

# ۳۵۰ ملیارده افغانۍ کلنۍ بودیجه او ۲۰۰ ملیارده رشوت

دافغانستان دراتلونکي کال (۱۳۹۲) کال بودجه چې نږدې درې سوه پنځوس (۳۵۰) میلیارده افغانۍ تصویب شوې ده، خو په دې هیواد کې یوازې ددولتي چارواکو رشوت تقریبا ۲۰۰ میلارده افغانیو ته رسیږي، چې دافغانستان په خیر دیو غریب اودنورو په خیراتونو ولاړهیواد کې دنه منلو



خبره ده.

دراپورونو تر مخه ،په تېرو لسو کلونو کې افغانستان دخپل تاریخ دتر ټولو فاسد اوپه رشوت کې ښکېل دولت د شتون له مرحلې څخه تېرېږي.

په داسې یو هېواد کې، چې د خپلو لومړنیو اړتیاوو او ځان ساتنې لپاره هم نورو هېوادونو ته اړوي، په ملیادرونو ډالر یوازې د رشوت له لارې تبادله کېږي.

د هغې تازه سروې له مخې چې دملګرو ملتونو لخوا ترسره شوې ده، ویل شوي دي، چې د ۲۰۱۲ کال اوږدو کې افغان ولس دولتي چارواکو ته څه کم څلور ملیارده ډالره رشوت ورکړی دی.

د سروې پر اساس د افغانستان په لویدیځ کې ٪۷۱ په شمال ختیځو سیمو کې ٪۶۰ په جنوبي سیمو کې ٪۴۰ اوپه مرکزي سیمو کې ٪۳۹ خلکو بډې ورکړې دي.

د توکیو په کنفرانس کې د افغان دولت لخوا د نړیوالو څخه د مرستو غوښتنه وشوه، تر څو ددې هېواد حکومت پرې په پښو ودرېږي، نړیوالې ټولنې هم له افغان دولت سره د۱۶ ملیارده ډالرو ورکړې وعده وکړه، خو ددې وعدې یو شرط دا هم و، چې افغان دولت به له دې هېواد څخه د اداري فساد په ورکولو کې جدي اقدامات کوي.

څه موده وړاندې دیوې نړیوالې ادارې لخوا دخپور شوي راپور پر اساس افغان دولت په نړۍ کې په رشوت اخستلو کې لومړی هېواد اعلان شو او په دې سره افغان دولت په نړۍ کې په اداري فساد کې تر ټولو ستر ښکېل هېوادا علان شو.

دا په داسې حال کې ده، چې یو شمېر خلک په دې اند دي، چې که له ۲۰۱۴ میلادي کال وروسته نا امنۍ افغانستان ونه ننګوي نو اداري فساد هغه ستره ننګونه ده، چې کولی شي افغان دولت له منځه یوسي.

په دې کې شک نه شته چې په اداري فساد کې ککړ کسان اکثره افغان حکومتي کارمندان او چارواکي دي، خو بلخوا ددې فساد اصلي عامل بهرنیان دي او اکثره یې په غټو درغلیو کې لاس لري، او غواړي چې افغانان نورهم په دې فساد کې ښکیل شي.



دمالیې وزارت اړوند دګمرکاتو په معینیت کې چې دمعافي کومه برخه ده، او دبهرنیو سفارتونو، ناټو، ایساف او ځینې نورو له ګمرک نه استثناء مالونو مالیه معاف کوي، اکثره بهرنیان درشوت په ورکولو او تر دې چې د تهدید له لارې خپل او یا هم له افغانانو سره په ګډه تجارتي مالونه له کمګرکي مالیې معاف کوي.

نن دافغان دولت هیڅ اداره هم نه ده پاتې چې په هغې کې په مختلفو او څورنګه درغلۍ او فساد شتون ونه لري، او ډېر لږ حکومتي چارواکي به داسې وي چې هغه دې رشوت وانه خلي.

# دکمکیانو خبرې

دکمکیانو خبرې که څه ماشوم په اساني سره نه پوهیږي چې څنګه خبري وکړي ، بلکې یو

هم
تولې
جالبې وي
، خوله ۲
کلونوراالندې
خبرې یې خورازړه
راښکونکې وي اوپه خاصه
توکه دموراو پلارلپاره یې
جذابې اود خوښې وړوي
اوبیاربنتیا همدامورا وپلار
دي چې ماشوم په خبروراولي
اود ګړیدوزمزمې اولهجې
ورښیي

مور، رومبی هغه څوک
ده چې دماشوم سترګې دهغې
په مخ کې پرانیستل کیږي
اوخپله رومبی کلمه له هغې
نه اوریدل اوزدکول غواړي
اوبیادمورپه لمن اوځولي
کې هغه کلمه دماشوم په مغز
اوزړه کې ځای نیسي ،
خومخکې لدې چې دماشوم
دخبروپه پیلدوکې دمورپه
نقش وغږیږو ، غواړو
یولنډبحث په دې باب درته
وړاندې کړوچې ماشوم
څنګه اوڅه وخت
خبرواوګړیدوته لاس غزوي

اوږده
اوپیچلې
موده اولاروهي
اوبیاپه یوې خبرې
ژبه ښوروي ،
تحقیقاتوښوولې چې ماشوم

د۱۲او۱۴ میاشتوپه عمرکې خپل رومبی لغت په خولې راوړي ، په دې ترتیب سره ویلای شوچې دماشوم د ۱۲ یا ۱۴ میاشتوموده دهغه دتفهیم اوتفهم مرحله ده چې څنګه وکولای شي یوه کلمه له خولې راوباسي

**له ګړیدووړاندې مرحله :**

ماشوم ددې لپاره چې څه وغواړي اویاڅوک پوه کړي نووړاندې تردې چې کومه کلمه تلفظ کړاي شي له ۳ طرزونواوطریقونه ګټه استفاده کوي، رومبی ژړااوفریاد ، دوهم نامشخص اوازونه دریم اشاري .

ویل کیږي چې په دغو ۳طریقوکې دماشوم دافهام اوتفهیم مهمه وسیله دنامشخصوخومعنادارواوازونوپه خوله راوړل دي

**ژړااوفریاد :**

هغه څه چې دماشوم په رومبیوشپواوورځوکې اوریدل کیږي هغه ژړا اوفریاددی. په اوله اونی کې ماشوم پرته له کوم ظاهري علت څخه ژاړي ، خودغه ژړادمورپه توجه اوتی ورکولوقطع کیږي

**نامشخص اوازونه :**

په رومبیومیاشتوکې په ژړاسربیره له ماشوم نه نامشخص اوازونه اوریدل کیږي، دغه اوازونه داسې ندي چې ماشوم زدکړي دي ، بلکې خودبخودله هغه څخه ظاهریږي اوتعجب خبره داده چې دغه اوازونه عمومي وي ، په هرملیت اونژادکې شتون لري اوحتی په هغوماشومانوکې هم وي چې په غوږوړکانه وي

ماشوم هغه مهال چې
وینې وي اوتنهاوي اوڅوک
ورسره نه وي چې هغه
مشغول کړي نوبیاهغه له
ځان سره په
همدغواوازونوبوخت
اومشغول وي اودهغه لپاره
خوشالونکي وي ، همدغه
وجه ده چې ماشوم
دخپلوهمدغواوازونوپه
کولوکله ناکله له ځان سره
تبسم هم کوي

په غوړوکوڼ ماشوم
هم تریوڅه وخته همدغه
اوازونه له ځان سره لري
خوڅرنګه چې خپل اوازونه
اوزمزمې نه اوري ترڅولذت
اوخوندترې واخلي
نوکرارکراردغه اوازونه
ودروي اوقطع یې کړي

**اشاري :**

له ژړا
اونابلدواوازونوورسته
دماشوم دغوښتنې اوافهام
اوتفهیم مرحله په لاس
داشاري راځي.

خوکه چیرې ماشوم
خپله غوښتنه اومطلب په
اشاره ترلاسه نه کړي
اوڅوک ځواب ورته ونه
وایي نوبیابیرته له خپل اول
چانس چې ژړاده استفاده کوي

**دخبرومرحله :**

اکثره ماشومان طبیعتاد۱۲ او۱۸ میاشتوترمنځ خبروته اماده کیږي اوپه همدې مرحله کې ماشوم دخبرولپاره خوله پرانیزي ،خوکه چیرې په دغه عمر کې ماشوم په خبرورانغی ښایي په عاطفی ډول په ماشوم کې څه کمزوری اواختلال وي خوداندیښنې وړنده

دماشوم له یوکلنې ورسته تردریوکلونوپورې ډیره دخبرواوګړیدولپاره مهمه مرحله ده ، ځکه په دغه موده کې هغه دلویانودخبروتقلیدکوي اوموربیاپه دې برخه ډیرمهم رول لري ، نوځکه بائیدمورلاندې مشوري اویادونې په نظرکې ولري

۱ - دماشوم لپاره دمورتلفظ اوکلمې بائیدساده اووړې وي

۲ – له ماشوم سره بایدپه علمي انداز خبرې ونشي ، داپه دې معنانده چې موردې صحیح لغات نه ورته وایي ، بلکې مطلب ترې داده چې کلمې درنې اواوږدې نه وي

۳ – هغه خبرې دې ورته وشي چې دماشوم ورته اړتیااوضرورت وي

۴ – که چیرې ماشوم په تلفظ کې خطاشوهغه بائیدورته اصلاح شي ، خوپام چې تمسخرپرې ونشي

۵ – دنومونوپه زدکړه کې بائیدکوشش وشي چې اصلي نوم اوعنوان وکارول شي ، مثلا ( وزه ) ماشوم ته بائیدوزه یاده شي نه ( بع اوباع ) یعنې هیجاني اوازونه

۶ - دماشومانوپه تناسب بائید ، هغوی ته دیني کلمې ، شعرونه ، کیسي ، اونورغوره سرودونه وویل شي ،ځکه دادهغوی ذهنوته ژرلاره مومي اوپه فهم کې یې وده راولي

۷ - اوماشوم ته هیڅکله عیبونه ونه ویل شي ،کنځلې اوتمسخر هغوی په ذهني ډول زیانمنوي اودرشداحساس یې له منځه وړي ( ترتیب : ل عزم )

## توهین به مقدسات و ترویج بی بند و باری؛

# از اهداف استعمار و اشغالگری

رخداد یک تحول سیاسی یا نظامی در یک مقطع تاریخی در تغییر دادن و دگر گون نمودن سرنوشت مردم یک کشور و حتی در تغییر مناسبات بین المللی تأثیر عمیق و ماندگاری را بجا گذاشته و می گذارد.

چه این رخدادها از نمونه های تجاوز و حمله به کشوری با استفاده از زور و نیروی نظامی و چه از نوع تحولاتی باشد که به دنبال اشغال یک کشور و تجاوز آشکار یک قدرت بزرگ به سرنوشت یک کشور آزاد و مستقل رخ داده است.

تحولات و حوادثی که در دوران و مدت اشغال یک مملکت توسط کشور اشغالگر انجام میشود، نیز از مهمترین نوشته های تاریخی هر دو کشور در صفحات تاریخ برای آیندگان به یادگار می ماند.

افغانستان نیز از این قاعده مستثنا نیست و روزهای تاریخی زیادی در تاریخ افغانستان اتفاق افتاده که هر کدام نقطه پایان بخشی از تحولات سیاسی و نقطه آغاز رخ داد تازه و نو بوده است.

تحول عظیمی که در این یک دهه در تاریخ کشور ما در حال وقوع است بدون شک عواقب مخرب و خطرناکی را برای کشورهای اشغالگر در ابعاد مختلف سیاسی، اقتصادی، فرهنگی و اجتماعی بجای خواهد گذاشت. همانطور که شوروی سابق تاکنون از بیماری که درنتیجهء شکست در افغانستان به آن مصاب گردیده بود رنج می برد.

اگرچه این حوادث و تحولات یک دهه اشغال کشور توسط دیو غول پیکر جهان (آمریکا) از نقطه نظر نوعیت و ماهیت با حوادث تاریخ گذشتگان در نظر بعضیها متفاوت است ولی در حقیقت هیچ تفاوت در شکل و نوع استعمار و اشغال کشور وجود ندارد.

جدا از اینکه خواسته های استعمار و استکبار چه بوده و چیست هدف اینست که این ملت در طول تاریخ چندین هزار سالهء خویش این را به اثبات رسانده است که تن به زندگی پر مشقت را میدهد ولی غلامی، بردگی و زندگی آسوده زیر چتر دیگران را نمی پذیرد.

اگر به نزدیکترین صفحه در تاریخ کشورمان نظری کوتاه بیندازیم مشاهده میکنیم که اتحاد جماهیر شوروی سابق با مجهزترین ارتش تا دندان مسلح و با استفاده از پیشرفته ترین سلاح وقت در برابر اراده آهنین و مقاومت مجاهدین

سلحشور و غازی مردان و شیر زنان این سرزمین مرد پرور طعم تلخ شکست را چشید.

مردمی که از خود سری های رژیم مزدور وقت و اشغالگران به ستوه آمده و درنگ را جایز نشمرده و دست به قیام و جهاد مسلحانه علیه تجاوز شوروی سابق به افغانستان زدند و با دادن جان و مال در راه آزادی دین و کشور از زیر سیطره و سلطهء ابرقدرت شرق و دفاع از اندیشه و باور های دینی خود مقاومت بی مانند نمودند تا اینکه عساکر اشغالگر شوروی سابق را مجبور به ترک و خروج از وطن نمودند.

شوروی ها نیز همانند آمریکائیان در آغاز با تصاویر رنگین و زیبا از یک زندگی مساوی و مساعد و بدون تبعیض برای همهء اقشار و اقوام افغانستان شروع به تجاوز و اشغال وطن نمودند، همانگونه که امریکائیان و همکاران منطقه ای و بین المللی اش با ورود و دخول تانکها، هیلیکوپترها و سلاحهای کشتار جمعی شان که بر آن تصاویر زیبا و نگارین از دموکراسی، حقوق بشر، همدردی، دفاع از حقوق زن و همنوع پروری و بلاخره بهشت برین بروی زمین ترسیم گردیده بود وارد افغانستان گردیدند. اما با گذشت زمان و به درازا کشیدن اشغال کشور روز به روز چهرهء آلوده و وحشی انها بر همگان ظاهر گشت.

اکثریت قریب به اتفاق مردم از همان آغاز و شروع اشغال شناخت کامل از اهداف و مقاصد شوم استعمارگران داشتند ولی دیری نپائید که گذشت وقت و زمان خیل خواب برده و غافل را نیز بیدار ساخت و همانگونه که در زمان اشغال افغانستان توسط شوروی ها بعضی از رخ دادها و حوادثی که سبب اتحاد و همبستگی تمامی اقوام افغانستان برای یک مقاومت و خیزش سراسری در افغانستان در مقابل شوروی ها گردید همانا توهین به اسلام و مقدسات اسلامی و نادیده گرفتن طرز زندگی اسلامی، تمسخر و بازی با کلتور و دستورات افغانی و دیگر برخوردهایی از این قبیل بود که یک چنین قوت سیاسی را بوجود آورد که نظیر آن کمتر مشاهده گردیده است.

آمریکائیان نیز بعد از اینکه توانستند با استفاده از بمب های خوشه ای و چندتنی که نظیر استفاده از آن ها در دیگر نقاط جهان دیده نشده بود و هدف گیری های کورکورانه که منتج به کشتار هزارها تن از افراد بیگناه گشت افغانستان را به اشغال خود درآورند و به گمان این که دیگر در این کشور پرنده ای در مقابلشان قد علم نخواهد کرد شروع به انجام اعمالی نمودند که از اهداف عمده و اساسی آنها پیش از اشغال کشور بود که از این جمله ما می توانیم بعضی از آنها را مانند شروع دور جدید مظالم اشغالگران با کشتار مردان، زنان ،کودکان و تجاوز به حریم و حقوق آن ها، سرآغاز بی عدالتی، پایمال کردن کرامت انسانی، توهین به دین و مقدسات دینی، فساد اجتماعی، فساد اداری، حمایت از جنایتکاران، ترویج استفاده از شراب و دیگر نوشیدنی های حرام اسلامی، جایگزین کردن فرهنگ و کلچر غربی و بی بندباری، تفوق طلبی قومی، اضمحلال دولتمداری و آدم ربائی و غارت سرمایه های ملی از طریق بانکهای چپاولگر و شرکتهای مخابراتی و ترانسپورتی را میتوان نمونه هایی از اهداف استعمار و اشغال در کشور برشمرد. (باامتنان ازافغان. تلکس)

# حضرت ابراهيم ادهم رح

(وفات نيټه ۱۲۲ هجري قمري. شام )

هغه چې دبلخ اوبخارا پادشاه وو خودالله تعالى له ويرې يې هرڅه پرېښوول ، ديوه شپون په څيرجامې په تن وکړې اوپه الهي عبادت اوبندګي يې پيل وکړ، يوکس له هغه وغوښتل چې نصيحت ورته وکړي نووې فرمايل شپږنصيحتونه درته کوم عمل پرې وکړه

۱ـ که چيرې دې ګناه وکړه اودالله تعالى بې امرى دې وکړه ، نودهمدغه الله تعالى روزي نوره مه خوره ، کس ورته وويل چې اى دالله دوسته داسې چيرې کيداى شي ځکه الله تعالى خوزمونږ خالق اورازق دى ، حضرت ورته ويل اياداخبره ډيره عيب جنه نده چې هم دالله نافرماني کوي اوهم يې بياترې روزي غواړي ؟

۲ـ که چيرې دې دخداى له امرڅخه سرغړونه وکړه نوبيادخداى په ملک کې نورمه اوسه ؛ کس وويل اى دالله دوسته داسې چيرې کيداى شي ، شمال ، جنوب ، شرق اوغرب ټول دهغه دى چيرته ولاړشم ، حضرت ورته وفرمايل چې ته چې يوضعيف بنده يې اياداخوښه وي چې ستاپه ملک کې څوک درنه سرغړونه وکړي ؟

۳ـ کچيرې دې ګناه کوله نوپه داسې ځاى کې يې وکړه چې الله تعالى تاونه ويني ! کس وويل الله تعالى په خپل قدرت سره هرڅه هرچيرته ويني ، حضرت وفرمايل: نوبيا ډيره ناسمه خبره نده چې روزي دهغه خوري ، په ملک اوځمکې دهغه کې اوسي ولې بيا دهغه په وړاندې دګناه ارتکاب کوي ؟

۴ـ هرکله چې عزرائيل درته راغى نوته هغه ته مهلت ورکړه ! کس وويل عزائيل کله پرته دالله له امرنه دبل چامني ، حضرت ورته وويل: نوچې داسې ده اوس خوعزرائيل ندى راغلى اودروح قبض ته مهلت لري نوتوبه وباسه اوپه سمه لاربرابرشه.

۵ـ که ملائيکې درنه په قبرکې دسوال اوځواب لپاره درته راغلې ، نوځواب مه ورکوه اوله قبره يې راوباسه ، کس وويل زه کله دومره قدرت لرم چې هغوى ته جواب ورنکړم اويايې راوباسم ، حضرت وفرمايل: نوسرله اوسه دهغوى ځوابونه تياراواماده کړه

۶ـ که دحشرپه ميدان کې درباندې غږوشوچې دګناووپيتى دې دروند ددوزخ مستحق يې ورروان شه نوته په دې وخت کې ووايه چې زه نه ځم ، کس وويل قربان داسې کله کيداى شي ، حضرت وفرمايل: نوچې داسې ده ګناه مه کوه ! (طبقات الصوفية، )

